دسوري شیرشاه دپنځه سوه لسمې
کالیزې دنړیوال سیمینار په ویاړ

# پښتون شیرشاه

مترجم:

سرمحقق عبدالرحیم (محمد راڼې)


د افغانستان د علومو اکاډمي

دپښتوڅیړنو بین المللي مرکز

۱۳۶۹



دسوری شیرشاه دپنځه سوه لسمی
کالیزی دنړیوال سیمینار په ویاړ

# پښتون شیرشاه



مترجم:

سرمحقق عبدالرحیم (ځدراڼ)

د افغانستان د علومو اکاډیمی

د پښتو څیړنو بین المللی مرکز

۱۳۶۹

# فهرست

| موضوع | مخ |
| --- | --- |

**ضروری یادو نه :**

دغه کتاب اولس فصله لری . پـه فهرست کی فصلونه پـه منظم دول راوړل شوی دی . چی دمتن په مطابق دی خو په متن کی د اوم فصل عنوان نه دی لیکل شوی او پر ځای ئی اتم ، بیا نهم فصل او همداسی تر اتـلسم فصل پ وری دوام مونه لی دی چی دا یوه طباعتی تیرو تنه ده. له محترم مو لو ستو نکو څخه پـه ډیر احترام هیله کیږي چی د لوستلو په وخت کي دغه تکی ته متوجه وی .

**په در ناوی**

## تقریظ

# دافغانستان د علومو اکاډمۍ د پښتو څېړنو
# د بین المللي مرکز محترم ریاست ته!

تاسې چې ما ته د پښتون شېرشاه په نوم اثر چې هندي مورخ او سوانح نګار مظهر —
ضاري د هلوي لیکلی او سرمحقق محترم عبدالرحیم ځدران ژباړلی دی را سپارلی و
په غور مې مطالعه کړ دا اثر د مقدمې نه پرته اتلس فصله دی د دغه اثر مطالعه څرګندوي
چې مؤلف د خپل اثر د پاره پر شمیر اثار مطالعه کړي او څېړلي دي خو زیاتره
اتکایې په صولت شیرشاهي کړی ده. البته د لومړي لاس له مدارکو پرته چې د سوریانو
یادمرولو په دوره کې لیکلي شوي او اکثریې په پارسي ژبه دي په وروستیو وختونو
کې یعنې د هندوستان د ازادي نه د مخه د انګریزانو په دوره کې پرشمیر اثار د
شیرشاه په باب ولیکل شول چې اکثریت یې هندي نشنلستي رنګ لري چې هغو د
ازادي او د یوه ملت په توګه د دوی هویت په درک کې ژور رول لوبولی دی چې په
دغو اثارو کې د کالکا رنجن اثر شیرشاه او د هغه عصر او د سید احمد مرتضی اثر صولت
شیر شاهي په ځانګړي توګه د یادولو وړ دي. او د دغه کتاب مؤلف د همدې مطلب
په درک سره په صولت زیاتره اتکا کړی ده.

دغه کتاب یوه مقدمه او اتلس فصلونه لري. لومړی فصل یې په لنډه توګه د

شیرشاه عظمت را ایا شوی ورپسې یې د کورنۍ ، هندوستان ته د فرید د نیکه ابراهیم او د هغه د پلار او میا حسن ورتګ، د فرید د زیږیدو وخت او ځای او د هغه د روزنې په باب بحث شوی دی په پاتې فصلونو کې د نورو اثارو په څیر د پلار د جاګیر انتظام د جاګیر نه لاس اخیستل د بهار پاچا سلطان محمد ته ورتلل او د دغه پاچا له خوا نوموړي ته د شیرخان لقب ورکول د جاګیر په سر د خپلو میړنیو ورونو سلیمان او احمد سره اخ و ډب او نورو ته ګوته نیول شوې ده .

شپږم فصل د پاچاهۍ په خوا د لومړیو ګامونو او چټول تر عنوان لاندې د شیرخان پرمختګ او بهار او بنګاله کې د شهرت د پوړیو وهلو ته وقف شوی دی. په همدې فصل کې دې خبرې ته هم اشاره شوې ده چې که چیرې پښتانه اتفاق وکړي ډیر ژر به غلام له هیواده وباسي. دا ځکه چې د مغلو په جګړه ییزو تاکتیکونو او د اښکر په ملځ کې د بلو اخیستلو د ناروغۍ په څیر یه و پوهیږي نو ځکه د هندوستان نه د غلیم ایستل ورته اسان ښکاري .

همدا راز په اوم او اتم فصلونو کې د شیرشاه پرمختګ او د همایون سره د هغه مخامخ کیدل، په نهم فصل کې د بنګالې پیښې او په لوهانیو د شیرخان د بري انځور وړاندې شوی دی ورپسې د شیرشاه او همایون ترمنځ جګړه د همایون ماته او د سقاو نظام له خوا له اوبو له د همایون د را ایستلو پیښه هم وړاندې شوې ده. لسم فصل د شیرشاه له خوا د هندوستان تخت نیولو ته وقف شوی دی. یوولسم فصل له هندوستان نه د همایون د تیښتې او بشپړې ماتې او همات شوي همایون د حرم سره د شیرشاه د غوره چلند څرک وړاندې کوي. دولسم فصل د شیرشاه صوبې او فتوحات څرګندوي البته دغه فصل د کالنجر کلا تر نیولو پورې او زدوي هلته چې د هندوستان د یوه پیاوړي او غوره پاچا عمر پای ته رسیږي او د باروتو په زیرمه ځای کې د اور د لګیدو له امله سوزي او شهادت ورپه برخه کیږي .

پاتې پنځه فصلونه د شیرشاه ستاینه او د هغه اعمالو او کړنو ته وقف شوي همدا راز د هغه اعمالو او فکري طرز په دې فصلونو کې په څرګنده توګه انعکاس موندلی دی دا چې یو زمامدار څه خصلتونه او څه اعمال باید ترسره کړي ترڅو چې رعیت آرام او اباد شي .

په کتاب کې د سوري کورنۍ عادل سلطان د ژوند حالات په مختصره توګه راغلي که څه هم

د نوموړي عادل سلطان دوره ډېره لنډه یعنې تقریباً پنځه کاله وه په دغه لنډه موده کې هغه

د عوامو د هوساینې او د رعیت دارامۍ له پاره دومره زیات کار کړی دی چې د مولف په قول

زیات شېرپاچا هانو په ډېره اوږده موده کې هم تر سره کړي نه دي، له همدې امله دا کتاب

کیدای شي د تاریخ د مسلسلو له پاره د ډېره ماخذ په شکل کار ورکړي که څه هم په کتاب کې د

نننی تاریخ لیکنې میتود چې انتقادي برخه یې پیاوړې وي نه لیدل کېږي داځکه چې د دغه

دول تاریخ لیکنې ته په دې وروستیو کالونو کې زیات ته پاملرنه شوې ده ولې د کتاب مواد په

زړه پوري او د استفادې ور ګڼل کېږي داکتاب یو شمېر هغې ښې اړخ چې ګوته ورته نیول

کېږي لومړی دا چې هغه څوک چې د سوریانو او سوري کورنۍ په باب معلومات غواړي ددې

کورنۍ د اومړي واکمن یعنې عادل سلطان شېرشاه په باب معلومات په دې کتاب کې په منسجم

شکل راغلي دي. ددې اثر بله ښېګڼه دا ده چې د بې ځایه حاشیو او تفصیلاتو څخه په کې ډډه

شوې او موضوعات داسې اوډل شوي چې سړی سملاسي د پېښو او اصلي واقعو سره مخامخ

کوي. د اثر دریمه ښېګڼه دا ده چې مولف له تعصب او پلوي تو ب نه ډډه کړې ده او موضوعات

یې په پوره بې طرفۍ کښلي دي د کتاب وروستی فصل کیدای شي د ټولو او په تېره بیا د

زمامدارانو له پاره سرمشق وي. دا ځکه چې د هغو سره سم عمل او چلند کول ټولنیز

عدالت او مساوات رامنځ ته کوي. د کتاب بله ښېګڼه د پېښو تسلسل دی چې په بشپړه

توګه په پام کې نیول شوی دی.

دا ثر د ژباړې په باب باید وویل شي چې محترم ځدران په دغه برخه کې تقریبا شل

کلنه تجربه لري نو ځکه اثر یې په پوره امانت داري سره ژباړلی او په ژباړه کې اضافات

تعقیدات او نوري نیمګړتیاوې نه لري. د ترجمې ژبه یې روانه خوږه او سلیسه ده نو

ځکه د کتاب مطالعه خوندوره او څوک چې ترجمه لولي د ستړیا احساس نه کوي. نو

کیدای شي دغه اثر د تاریخ د څېړونکو له پاره د سوري شېرشاه په باب یو غوره

ماخذ وګڼل شي او په دې برخه کې د دوی علمي تنده ماته کړي. لدې ځکه کتاب او

ژباړه یې مثبته ارزیابي کوم او محترم مترجم ځدران ته د دې اثر د ژباړلو په برخه

کې مبارکي وایم او هیله من یم چې په راتلونکي کې د په زړه پوري او ګټورو اثارو په

ژبارلو سره زموږ ژبې او کلتور دغنا لەپارەلازیاتې هلې ځلې وکړی دەتەد بریالیتوب په هیله دپښتو څیړنو د بین المللی مرکز څخه هیله کیږی چی دغه کتابګوتی چی اصلاح شوی شیرشاه د (۵۱۰) کالیزی پەویاړ ژباړل شوی ژرترژره چاپ ته ولیږی .

په درناوی

محقق فرهادظریفی

کیده . لنډه دا چې شیرشاه سوری یو حیرانوونکی شخصیت و . د ده په ذات کې
د اوصافو او کمالاتو حساب نه کیده ده چې د عامو عسکرو د ژوند قصرونو او غوره
توب د پاره کوم کار و نه وکړل هغه په لږی کې ترلنې پسوری پټپل تول ارزښت
سره پاتې دی اوری به .

دی یو داسې شخصیت او هستي وچې ژوندانه د توروو د ډېروخې د پاره وقف او
نمونه و . هغه دژوند ټول خپل مطالعه ذری واله هرپاره د عبرت او پند هم په
ذره پوری زمینه برابر وي . ددغه کتاب دهمدغه مقصد او هدف په نظر کې نیواو
په لیکې لیکل شوی دی .

# لومړی فصل

## ابتدایي ژوند

**دشیر شاه عظمت :** دهندوستان په پښتنو پاچاهانو کې د شیر شاه سوري نوم تر ټولو زیات مشهور دی . د ده شهرت او عظمت پروازې په دې کې نه دی چې ده ډیر معمولي انسان په توګه پرمختګ او د خپل زړور توب جرأت او تورې په زوره د هندوستان پاچاهي تر لاسه کړه ، بلکه د ده د شهرت اوازې وایي، او په وجه دا ده چې څه پرازې خپل حکومت په پنځه کلنه موده کې داسې ښکور او غوره کار وته ترسره کړل چې حتی ډیرو اوږدو اوږدو پسا چلانو هم د خپلو حکومتونو په اوږدو د ورو کې نه دي کړي . شیرشاه په داسې ډېره طریقو او غوره کاروایو سره خپل حکومت او سلطنت ترتیب او منظم کړ چې اوس هم کله چې موږ هغوی ته ګورو تر مطالعې او څېړنې لاندې یې نیسو حیرانېږو او په دغه برخه کې د ده غوره صلاحیتونو او بې نظیره لیاقتونو ته ګوته په غاښ نیسو . د ده د ښو صلاحیتونو او جراتونو د شهرت باعث د ده ذاتي اوصاف او خصوصیات دي، د ده ذاتي اخلاقو او خصوصیاتو د څېړنې څخه د نو موړي هغه غوره سیرت ، عدل او انصاف پوره اندازه لګېدای شي .

سزا ورکول لازم گڼل هغوی ته یې سزا ورکړه. د یاغي کسانو څخه یې د بیا داسې عمل له کولو تضمین واخیست او خوشې یې کړل. د فرید د دې کار نتیجه دا شوه چې د هغو خلکو تور داډول جرایم او ناوړه اعمال پرېښودل. په زراعت او کرنه بوخت شول. فرید چې ولیدل د هغو خلکو د خپلو ناوړو اعمالو څخه لاس واخیست هغه و چې نوره مهرباني یې هم ور سره څرگنده کړه.

فرید د خپل جاگیر د ټولو کسانو سره داسې راشه درشه کوله چې د وی ټول واړه او لوی دده په مقابل کې د هر ډول قربانۍ ورکولو ته تیار وو. د فرید دا ډول چال چلند او عمل ددې باعث شو چې په ډېره لږه موده کې ټول جاگیر معمور شي. د خلکو اخلاقي اجتماعي او مالي حالت یې نوره شکل ویندو. لنډه دا چې د فرید په د غوره تدبیر سره د حسن خان د جاگیر هغه ټولې خرابۍ او بدامنیتی چې تر ډېره د مخه یې تل د تومورۍ د پیدا کېدو سبب گرځیدلې د منځه ولاړې او د یو خوشحاله او ارام ژوند دوره پیل شوه.

د بهار په ټوله علاقه کې د فرید د غوره انتظام او دده د عدل او انصاف او مساواتو خبرې ره غږېدې. په هر ځای کې به دده د ستاینې خبرې اترې کېدې. په هغه ځا یانو کې چې متکبرو او سرغړو وگړو کسانو تل ظلم کاوه، هغوی اوس د فرید د غوره تدبیر له برکته ارام او د هر ډول ویرې څخه خلاص وو، د همدې کبله هغوی ټول د فرید ملاتړ او په شپه او ورځ د سر په بیندانه ددوی چو پرته تیار وو. خلکو به تل دده پلار حسن خان ته مبارکي ورکوله او ورته ویل به یې چې ستا د زوی د غوره کاروایي په برکت زموږ سر و مال او آبرو په امن کې شوه. لنډه دا چې دده د خپل زوی ستاینه د هر چا له خولې ډېره واورېده. د فرید ستاینو ډېر خوښ کړ او د خپل قهرمان زوی د پاره یې دعاوي کولې. خو لې څه وخت به تیری خلکو د فرید ستاینه کوله په څیدو کسانو باندې به چه ته لگیده او گڼه به ور ته ور تله. لو ډېر یې چې هیڅ د لاسه ورته شول او د دغو کسانو په اغېزت، زوړولو او نقصان ورسولو پسې به یې لیکې را وتغبتی. حساداتو فرید پر ضد هم یو ډول او بل ډول ساز ونه کول او غلط الزامونه به یې پرې لگول د غو سازشونو او غلطو

حسن خان دده دولت په خرابولو کي ولګيا چي زه تا پښتنو زامنو کښي تر ټولو د
او حتی پښتنو له ټوله کورنۍ کښی لایق شخص ګڼم. زما زړه نه غواړي چي ستا شخه د
جاګيرونو نظم واک وانخلم. ولی د خپل مجبوريت او قوله کبله مي سليمان او احمد ته د جاګيرونو
تنظيم واک ورکړ. که زه ما ته چه ښکاره ده او پوهېږم چي دوی دا کار نه شي کولی. ځکه چي
پښتنو پر هغو او ته پېرېږم د جاګيرونو کومه ترقي ورکړه شته ته دوی د لاسه د نقصان
رسېدونکي وي. ولی د مجبوريت له مخي د هغوی په لاس د دغه کار دوی ته سپارم .

# خلورم فصل

## دجاگیر بېرته لاس ته راوړل

څه وخت چې فرید د پلار د جاگیر څخه لاس واخیست نو یې د آگرې لاره ونیوه .
هغه وخت په هندوستان باندې د ابراهیم لودي حکومت و. د ابراهیم لودي د خاصو معتمدینو او لویو سردارانو په ډله کې یو هم د آگرې صوبه دار دولت خان لودي و. فرید نوموړي ته ځان ور ساوه . د هغه سره ورو ورو پېر مخ ولاړ. د خپل غوره چوپړ او لیاقت له مخې یې د دولت خان په زړه کې ښه ځای ونیو. هغه وچې د ده گروېده شو. د دواړو تر منځ اړیکې ورځ په ورځ ښه کېدل .

په دغه اثناکې حسن خان مړ شو. د جاگیر په برخه کې یې د زامنو تر منځ مشورې روانې وې چې مشکې په کومو کومو برخو وویشي .

څرنگه چې فرید هلته نه و، نو د هغه کیله د هغه سره د مشورې د کولو سوال هم نه پیداکیده . سلیمان خان د پلار په ځای جانشین وټاکل شو. د هغه د ورور سره سم د مشرۍ پگړۍ د ده پر سر کېښودل شوه. د فرید کوچنی ورور نظام خان وو د ده ملګرو شو او د خپل ورور سلیمان د سر نه یې پگړۍ راو غوړ ځوله او په لوړ اواز یې وویل چې د مشر ورور په غیاب کې نه تاسو او نه ماته دا حق رسېږي .

دوه دستور او قانون ستاسو د دغه عمل ملا تړ نه کوي. د وراثت له مخې هم دا جایزه او رواخبره نه ده. ستاسو د دغه عمل له لاسه به زمونږ په کورنۍ کې بې اتفاقي پیدا شي. د د همدې دغه اور به زمونږ ټوله کورنۍ وسوزي. ده خپل ټول ورو ته مخاطب کړل او ورته وې ویل: ((پلار چې پخپل ژوند کې د جایداد کومه برخه ماته راکړې زه په هغه قناعت لرم. ولې د جاګیر ریاست او مشر توب چې کوم دی هغه لو د مشر ورور حق دی)). دغه خبره چې سلیمان واوریده نو یې حس کړه چې نظام خان ریښتیا وایي. هغه وچې د ریاست او مشرتوب څخه یې لاس ونه واخیستل او وې ویل چې په ریښتیا سره هم دا حق د فرید دی زه پخپله د فرید اوامر په غاړه کوم.

تر دغې پېښې وروسته نظام خان فرید ته خبر ورکړ. تر دغه وخته لا فرید په اګره کې وه. فرید دولت خان لودي د دغې ټولې جریان څخه خبر کړ. د فرید دا خواهش نه وچې حتماً دی دې جاګیر تر لاسه کړي. ولې دولت خان ده ته دا مشوره ورکړه چې نه حتماً ولاړ شه ځکه چې ستا په نه تګ کې به ورورنو تر منځ جګړه او بې اتفاقي پیښه شي. دغه بې اتفاقي به ستاسو ټوله کورنۍ په مصیبت اخته کړي. دولت خان دغه معامله حتی ابراهیم لودي پورې ورسوله. هغه وچې د پاچا څخه یې د فرید په نوم د جاګیر تسلیم کولو سند واخیست. دغه سند فرید واخیست او د خپل جاګیر پر خوا روان شو. هلته یې خپل اقتدار تر لاسه کړ.
خلک ده په راتګ سره ډېر خوشحاله شول. ده د ټولو څخه مننه وکړه او دوی یې خپلو وظایفو ته متوجه کړل.

### د فرید نیک نیتي :

په دغه وخت کې محمد خان سوري پوره واک او مشر و. دی د حسن خان د کورنۍ څخه څه ناڅه خفه و. سلیمان هغه ته ورغی او شکایت یې ورته وکړ. محمدخان موقع غنیمت وګڼله او فکر یې وکړ چې اوس د دوی ترمنځ د بې اتفاقۍ اچولو وخت دی. د همدې کبله محمدخان راشه درشه ورسره وکړه او هڅه یې

ورکړي وروته یې ویل چې ته هیڅ وکړه کوه زه به ټول کارونه سم کړم . سلیمان خو هغه یې جاګیر د ده په قبضه کې راشي. محمدخان په دغه برخه کې هم ده ته وعده ورکړه .

د محمدخان سوري سرداري ډېر زور ورځ و ، که ده غوښتي وای نو جګړه یې هم کولی شوه ، ولې څرنګه چې په دغه وخت کې سوري کورنۍ مخ په زوال وه او د مغلو فوډ حملو ځورونه ګرم وو ، د همدې کبله په داسې حالاتو کې ده دومره طاقت نه درلود څخه کار اهم ستل په ډېره بېړه ونه کړل . دغه و چې د ډېر ډول چال څخه یې کار واخیست . همدا رنګ یې فرید ته یې د لږ صبر او ملایمت څخه ډک یو پیغام واستاوه په پیغام کې یې ورته ولیکل چې زه ستاسو د کورنۍ خیر خواه یم. سلیمان ستا ورور دی. د ده جاګیر په برخه کې ستاسو څخه شکایت لري. د همدې کبله ماته راغی. که چېرې تاسو ما داور کړی ومنئ نو زه به د جاګیر په برخه کې ستاسو ترمنځ روغه جوړه وکړم . تر څو ستاسو ورونو ترمنځ شکر رنجي پاتې نه شي .

فرید ډېر هوښیار و ، ده ته خدای په بره او لیاقت ورکړی و . په دې پوه و چې محمدخان زموږ د واړه ورونو ترمنځ د جګړې د پیښېدو په هڅه کې دی. نو همدا و چې د محمدخان پیغام په ځواب کې یې د ده د احسان او مهربانۍ څخه شکر په ځای کړ ، د همدارنګه یې خپل ځواب کې زیاته کړه چې اوس په جاګیر کې د پلار د دور او بې امنیتي ده ، په دغه وخت کې ماته د امنیت په ده ، چې زه څپله علاقه پرېږدم او د پلار لوی ولاړ شم. د همدې کبله زه ځول کش ډېر نظام خان ته ورته درلېږم ، ته سلیمان او احمد ته پوه کړه او ماته یې را ولېږه . زه هم دغه کوم چې د دوی سره به ښه سلوک او رویه وکړم . ما دوی ته له جاګیره ایستلي او نه مې دوی ته په سپکه سترګه کتلي دي . ما د دوی مور ته هیڅ نه دي ویلي ، د ټولو سره مې خوږه په ډېره پوره سلوک کړی دی . دوی پخپله تللي دي . دوی ته نور هم د پلار په ملک کې برخه لري . زه هیڅ کله ته هوا ادم چې د دوی برخه پخپله قبضه کې و نیسم ، خو که ستاسو ارزو وي چې زه دې په حکومت کې د دوی برابره برخه ورکړم نو دا نه شي کېدای.

## فرید دیوه ستر زړی‌انسانه په حیث :

دلته د فرید اخلاق د تعریف او ستاینې ور دی، که چیرې ده غوښتي وای لو په جاګور پاندې د کامل تسلط او قبضې څخه وروسته یې کولی شول د خپلې کورنۍ او قرابت کورنۍ هغه یې پاندې تمول حاسدانو او مخالفین له منځه یوسي، او په دې توګه سر د خپل هیڅ قهري واخلي، د ده محمد ارنګه کولی شول چې تو لو هغو خلکو ته چې د ده پر ضد به یې ماز شوله کول او یا به یې د ده پر ضد د ده پلار ورا لمساوه سخته سزا ورکړي. وای خو رنګه چې فرید داوی حوصلې او او وطر فکر څښتن و نو د مخالفینو څخه د بدل اخیستو څخه تیر شو. همغه و چې نه یې دوی ته کوم تاوان وررساوه او نه یې د خپلو ماڼکو وروڼو په حق کې څه واچول، څه وخت چې محمد خان غوښته د خپلو وروڼو تر منځ بې اتفاقي واچوي او هغو د یل جرګه یې وجنګوي فرید حقي د خپل خوره ستونځې په واسطه هغه د هغو ناکام کړ او د مخالفینو پلانونه یې خاورو سره خاورو کړل.

## دفرید احتیاط :

څه وخت چې محمدخان د فرید له خوا مایوسه کوونکی ځواب واورېده په قهر شو. د سلیمان ته ورغی چې ستا ورور په اسانه سره نه تسلیمیږي. ته او محمود تر اوسه صبر وکړه زه د فوځي قوت په ذریعه د هغه څخه برا اخلم. او ستا غوښتنه پوره کوم •

## دلودي کورنۍ ختمیدل :

دلته فرید ته هم په دې ولګیده چې محمد خان په ده باندې د یرغل کولو نیت لري. د همدې کبله یې ځنې احتیاط ضروري دی. ځکه چې د محمد خان د فوځي قوت په مقابله کې فرید خپل ځان ضعیف ایده د همدې کبله یې دیوه داسې ملګري په لټه کړو چې په هغه ورځ کې مرسته ورسره وکړي. په همدې فکر کې و چې د بهار حاکم ورپه زړه شو. د دغه حاکم نوم بهادر خان و. فرید هغه ته ځان ورسولیه، ولې کومه نتیجه یې ورنه کړه. په ۱۵۲۶ ع کال کې بابر د کابل له مخې په هندوستان ورننوت. او مرزی د پنجاب څخه تیر شو او د پانی پت په پراخ تاریخي میدان کې یې د ابراهیم او دی په خلاف د جګړې صفونه جوړ کړل. همغه وچې د هوا ر خوا تر منځ جګړه ونښته. تر سختې نښتې وروسته ابراهیم او دی سخته

په اراده او همت کې کوم بدلون رانه ورسېد. دی د پخوا نه لا زیات جوش او خروش سره په ډېره بېړه او ډېر وخت شو او ټینګ تصمیمونه یې ونیول. هغه دا ګټله قدرت ورکړ چې د دښمن څخه په هره توګه چې کېږي خپل وار به اخلي، او خپل جاګیر بېرته خپل لاس ته راولي.

## دشیر خان تدبیر:

شیر خان که څه هم د نسو د ور څخه د سر سخي غږ جنګلونو پسا تېښتي عقیده له دې لېدلو په ژوند کې کله کله داسې وخت هم راځي چې سړی مجبورېږي چې د خپلو ملګرو او دوستانو سره ونه ګوري او د خپلې ارادې دېښتو ته د پاره سرسته قرې و غوادي. ځکه کله کله په داسې صورت کې کار ته لاس اچول د خرګند نقصان باعث کېږي. د شیر خان سره خو را اړ عسکر وو. ولې د دښمن زیات زیات قوځ او پوره قوي وه د هغوی کېله د شیر خان د پاره ضروري وه چې تر یو معقول بند وبست څخه وروسته د خپل حریف سره لاس او پنجه نرم کړي. ده د خپل کوچني ورور نظام خان سره مشوره او مصلحت وکړه. تر خبرو اترو وروسته داسې پرېکړه وشوه چې د ګوا مانګپور قومي خای حاکم جنید برلاس ته ور ننګ چې د باور زیات اعتمادي سړی دی ضروري دی. هغه و چې شیر خان ګوا مانګپور ته ولاړ. د جنید برلاس سره یې په دغه برخه کې خبرې اترې وکړې. جنید د دوی ملاتړ ته تیار شو. نوموړي د شیر خان پوره میلمه پالنه او مهرباني وکړه. د خپل قوځ یوه برخه یې د هغه سره کړه. شیر خان د همدغه قوځ سره بېرته سهسرام ته راغی. ترڅو ورسته شیر خان د خپلې دلې سره هغو پرګنو ته ولاړ کوم چې د محمد خان په موسته او ملاتړ د سلیمان لاس ته ورغلي وي. سلیمان د مقابلې توان په ځان کې و نه لید. هغه وچې نوره علاقې یې بېرته پرېښودې او وتښتېد.

شیر خان په دې توګه سره بیله کومې جګړې خپل جاګیر بېرته ونیو. تر دې وروسته یې د محمد خان خوا ته حرکت وکړ. ځکه چې محمد خان د دغه ټول فتنې اصلي محرک و. د محمد خان د حکومت د مرکز نوم چونده و.

شیر خان د چو ندې پر خوا روان شو. محمد خان ته چې ده د ور ننګ د خبر چې

شېرخان د یوه لوی لښکر سره راو، اندې ورسېد دغه کار محمد خان هم په ویره کې
واچاوه. هغه وچې مسلمان په تقلید یې چولاوه پرېښوده او وتښتېده، شېرخان په بریالي توګه
سره چولاوه ته ننووت. هغه وخت د شېرخان سره دومره لښکر و چې که چېرې یې غوښتلي
وای کولی یې شول محمد خان تعقیب، مال او اسباب یې تر لاسه کړي او پخپله دی ووژني.
ولې شېرخان ډېر مهربانه زړه درلود. ده نه دښمن تعقیب کړ او نه یې د هغه مال او اسباب
ته لاس ور وړ. ده محمد خان ته ولیکل چې ما که څه هم ستا په علاقه باندې یرغل وکړ ولې ته
په دې پوه شه چې زما دغه کار ډېره مجبوریت له کبله و، ستاسو زه پخپله مجبور کړم چې
دغه کار ته لاس واچوم. اوس زه نه غواړم چې ته په ځنګلونو او غرونو کې دېخوار
آخوار او سرګردان او در په دره وګرځې. ته تر ما په عمر کې ډېر لوی او سپین ږیری یې. زه
لا د خپل پلار په حیث ګڼم. د همدې کبله زه ستاسو څخه هیله کوم چې تر ما په خلاف حرکات و نه
کړې زړی او په صلح سلم کې ژوند وکړې. زه به تل ستاسو احترام کوم. زه ستاسره د
صلحې کولو وعده کوم. ته خپلې علاقې ته بېرته راشه او خپل حکومت منظم کړه. زه ستا د
جاګیر خواهش نه لرم، بلکه غواړم چې ستاسو چوپړ وکړم.

څه وخت چې محمد خان ته دا لیک ورسېده نو د شېرخان د دغه شریفانه سلوک نه حیران
شو. ده ته څرګنده شوه چې کوم شخص چې ما ورځان دښمن کړ هغه ډېر شریف انسان دی.
ده دا هم حس کړه چې که چېرې شېرخان غوښتي وای نو وژلی یې هم شوم. ولې د ده د لیک څخه
دا په ډاګه چې دی ډېر مهربان او نېک خویه انسان دی. څه وخت چې محمد خان د
شېرخان لیک واوست نو یې د شرم سر کښته واچاوه. دی په خپل کړو باندې سخت پښېمانه
شو. د شېرخان شریفانه سلوک نوموړی د تل د پاره د ځان غلام کړ. هغه وچې محمد خان
خپلې علاقې ته بېرته راستون شو. شېرخان د ځان پیلن اعلان وکړ. شېرخان هغو لو
سره ډېره مهرباني وکړه. د شېرخان د دغه کار د له ځانه کول خلک د شېرخان طرفدار کړل.
په دې توګه سره د شېرخان قوت نور هم زیات شو. تر دغه بریالیتوب وروسته شېرخان
خپلې علاقې ته راستون شو. په پای کې خپل ځای خپل ورور نظام خان وټاکه. دی پخپله د
جنید خان خدمت ته حاضر شو او د هغه د مرستې څخه یې زیاته شکریه په ځای کړه.

# پنځم فصل

## د باچاهۍ پر خوا لومړی قدم اوچتول

### په نوکرۍ کې پرمختګ

شیرخان تر یوې مودې پورې د سلطان جنید نوکري وکړه. جنید د ده د وفادارۍ او خوږه چوپړ و څخه خوشحاله شو. هغه وخت نو موږی یې خپل خاص مصاحب او مشاور وټاکه. په هره معامله کې به یې د ده سره مشوره کوله. تر ټولو مشاورینو او مصاحبینو یې زیات په شیرخان اعتبار درلود.

دا وخت په هندوستان کې د بابر جګړې لا روانې وې. د ابراهیم لودي تر وژل کېدو وروسته بابر خپل فوځونه د هندوستان په مختلفو برخو کې خپاره کړل. دی د خپلو مخالفینو په ټکولو او مانولو هر ځای بوخت و. د چندېرۍ راجه میجي رای هم د بابر مخالف و. بابر په چندیرۍ باندې د یرغل کولو د پاره راجه میجي رای د جاګیر پورې پلې خواته لښکرې وا چولې. سلطان جنید هم د خپلې علاقې څخه ولاړ او د بابر د لښکر سره یو ځای شو. دغه وخت شیرخان هم د جنید سره و.

### د شیر خان د ازادۍ جذبه او احساس:

د سلطان جنید د نوکرۍ له کبله شیر خان ډېر وخته پورې د بابر په لښکر کې پاتې شو. په دغه اوږده موده کې شیرخان د بابر د کارګانیانو د جنګي تاکتیکونو د

له ولېدلو . دی نه پوهېده چې دا څنګه وشول. ژر څه یې ورته وکړل. بالاخره یې هغه څه چاره را وکښله او بې درنګه یې غوښه پرې کړه. تر هغه وروسته یې په خوړلو پیل وکړ. بابر هغه د ده جرأت او بې پروایۍ ته حیران شو. په ډېر تعجب سره یې ورته وکتل. بیا یې د ده خپلو مصاحب ته په غوږ کې ووېل چې دا ده غه پښتون ډېر تکړه څه شر او فتنې اوري. کوم ډېر چالاک دی دا په خپله کې معلومېږي ډېر و او په پښتنو سردار او په خپله کې تدبیر لوری ده مصاحب د پاچا د ده خبره تائید کړه.

## د شیر خان تدبیرونه :

اله دا چې هغه بابر په لښکر کې تر یوې مودې پورې وو او وروسته شیر خان سهسرام ته ولاړ. هلته چې ورسېد خپل چاپیریال یې مطالعه کړ. دا اندازه یې ولګوله چې که چېرې ټول پښتانه سره یو او متحد او منظم کړي او تر شا یې د کوم آزاد سلطنت مرسته ورسره وي نو ډېر ژر به د یو مستقل پښتون حکومت بنسټ کېږدي. هغه و چې د پښتنو مشرانو غونډول او یو کول یې پیل کړل. سلطان محمد د بهار والي سره شیرخان نږدې اړیکې درلودل. د ده وخت کوم هدف او مقصد چې شیرخان په مخکې درلود د هغه پوره کولو د پاره یې سلطان محمد خان ته ور تګ ضروري وګڼلو. د خپل جاګیر کارو بار یې نظام خان ته وسپاره او په خپله سلطان محمد ته ورغی. سلطان محمد ده ته ډېر عزت او احترام وکړ او په پخوانۍ توګه سره یې دا ځل یې د خپل زوی کې وایه جلال خان اتالیق وټاکه. شیرخان دا اتالیقي وظیفه او فرایض په ډېره ښه او ښکلې توګه سرته ورسوله. د جلال خان روزنه یې په ډېره ښه توګه سره وکړه. د همدې کبله سلطان محمد تر پخوا زیات ده ته احترام کاوه. جلال خان لاکوچنی و چې سلطان محمد مړ شو. د سلطنت کارونه او واک د ده مور لاډو ملکې په لاس کې واخیست. دې شیرخان خپل مشاور وټاکه. د سلطنت ټول کارونه د شیر خان په مشوره او خوښه تر سره کېدل. څه موده وروسته لاډو ملکه هم مړه شوه. د دې تر مرګ وروسته د سلطنت ټول کارونه په بشپړه توګه سره شیرخان منظم کړل. د بهار ټوله علاقه د ده تر اداري لاندې وه. ده په دغه علاقه کې ډېر زیات اثر او نفوذ پیدا کړ.

پلانځی یې پرېښول وکړ. شېرخان په ډېره مېړانه او زور ورته سره مقابله وکړه. د دواړو ترمنځ سخته جګړه وشوه. په دغه جګړه کې د محمود خان لښکرو ماتې وخوړه او په بنګال کې یې ژوندي خلاص او بېرته مقابله شول. د جګړې په میدان کې د دښمن ډېرې اتوار ولوېدل. په دغه جګړه کې په آسونو، فیلانو او وسله بر سېره یې شمېره نور سامان لکه زر، جواهر او خزانه هم د شېرخان لاس ته ور غله. په دغه ولجه سره د شېرخان قوت نور هم زیات شو. حتی تر دې چې سپاهیان یې هم څه دولت من شول.

## د شېرخان مخالفت:

شېرخان د جلال خان د ولي عهد په وخت کې د مخالفینو د مخلصو او د سلطنت د استحکام په لوکې ډېر په زړه پورې خدمت وکړ. ده په دغه برخه کې د نمك پوره حق اداکړ. څه وخت چې جلال خان ځوان او د سلطنت په کارو نو په پله شونو خپلو هغو کسانو چې د شېرخان د بریالیتوب او خوره کاروایي څخه کېنه ورته په مخالفتونو او سازشونو لاس پورې کړ. دوی د شېرخان په برخه کې هر ډول بدګومانۍ خبرې کړې. څېنو حتی د وژلو د سیسې هم ورته جوړې کړې. شېرخان چې دغه وضعه ولیده او د هې په ځای چې پخپله د جلال خان سره په دغه برخه کې خبرې اترې وکړي خپل وکیل یې ورو لېږه او داسې لیك یې ورته ولیکه چې ما ستاد کور چلیتوب په وخت کې د ستا ملك مسئول وکړ. په هره ممکنه وسیله مې ستا سلطنت د ټینګښت او ښه وساله او په ټول بهار کې مې امن او کراري خوره کړه. ولې اوس خینې مشران او سرداران په تا ځه زما مخالفت کوي او پوره غاطه تګ لاره یې نیولې ده. د هغوی کېنه د څه خبره ما ځوروي. زه نه غواړم چې د دوی سره جګړه وکړم او د ملك امن او سوله د ځانونو سره خاوري کړم. ما ته دا پښه هیڅ توګه سره خوره نه ښکاري چې د شپې او ورځې په ارامۍ تېر ولو سره مې چې د ملك انتظام شوخوره بنه کړی دی اوس یې د جګړې او ګډوډۍ په راتلنګ نه کولو سره پخپله بربادکړم. نظم او انتظام پښه هرو

سورتونو سره ممکن دي . يا تاسو ماته اجازه راکړئ چې زه خپل جاګير ته بيرته
ولاړ شم. پادشاه مشران اوسرداران خپلو جاګيرونو ته واستوي ترڅو د جګړې د
پاشېدو مخنيوی وشي . جلال خان د خپلو مشرانو او سردارانو سره مشوره وکړه .
هغوی او داسې را يې ورکړه چې شير خان ته خپل جاګير ته د بيرته تګ اجازه
ورکړه . هغه وچې ده شير خان ته د بيرته تګ اجازه ورکړه . شير خان د هغه
ځايه سهسرام ته بيرته راغی . جلال خان د خپلو مشرانو او سردارانو په مشوره او مصلحت د
بنګال والي محمود خان سره دوستانه اړيکې ټينګې کړې .

زیات کومک را وغوښت ولی مخکی تر دی چی هغه ته کومک را ورسیږی شیر خان خپل لښکر ته په یوه وار سره دیرغل کولو امر ورکړ . د دواړو خواوو منظم سخته او درنه جګړه وشوه . دشیرخان پوځ په دغه جګړه کی په داسی جرات ، سرښندنه او میړانه سره وجنګیده، چی حتی دښمن د هغه شجاعت ته غاړه کېښوده. دابراهیم لښکر ټیټ پرک شو . ډیر عسکر یی ووژل شول . پخپله هم د جګړی په میدان کی ووژل شو. هغه وچی د شیرخان کامله فتحه او بریالیتوب په برخه شو . داد شیر خان دوهم بریالیتوب وچی د ده ملګروته یی جرات ورکړ . ډیر زیات مال او دولت یی ولجه کړ . د آسونو ، فیلانو او د جګړی د وسلی هیڅ شمیر نه کیده . پوره خزانه هم د شیر خان لاس ته ورغله دغی ولجی او دولت په آینده کی دشیرخان د پوځی قوت د زیاتوالی په برخه کی پوره مرسته وکړه . دغه بریالیتوب او فتحی د ده شهرت څوچنده کړ . په ټول بهار کی د شیرخان د نوم ډنګه وره غږیده . یوازی په بیهار نه بلکی د بنګال ځینی نوری برخی هم د ده تر اداری لاندی راغلی.

## شیرخان دیوه غیر تمـــن پښتـون په حیث:

په دغه وخت کی د چنار ګډهه کلاد خپل کلکوالی له کبله ډیره مشهوره وه. دسلطان ابراهیم لودی خزانه هملته وه . دغه خزانه د یوه باتور سردار دتتوی اوزی ډرو عسکرو له خوا ساتل کیده . کله وخت چی شیر خان سلطان محمود ته ماتی ورکړه او بیهار یی تر خپلی اداری لاندی را وست . په دغه اثنا کی دغه خزانه دلاډو ملکی په لاس کی وه چی بیګم لاډو ملکه پخپله هم په کلاکی دننه اوسیده . کله وخت چی بهار د شیر خان تر اداری لاندی راغی نود هغه سره دومره قوت و چی کیده شو چی بی وای لږ څه ډیره اسانتیا سره په یوه کلا او خزانه تر لاسه کړی وای . ولی دی په دا پوه وچی دغه خزانه د یوی کونډی ښځی په قبضه کی ده . نود هغی څخه په زور سره د دغی خزانی اخستل د پښتنی ننګ غیرت او اصولو په خلاف عمل دی. هغه وچی په لاډو ملکه باندی یی هیڅ فشار را نه ووست . ځکه چی هغه کونډه وه نو شیر خان دا اراده کوله غوښتنه تری وکړه . ملکی هغه په ډیر خوښی سره ومنله . هغه وچی شیرخان هغه په نکاح کړه . په

# اتم فصل

## همایون او شیرخان

### د همایون پاچاهي

اوس نو د شیرخان د ژوند هغه مهمه دوره پیل کیږي داهغه وخت دی چې بابر مړ او هرځای یې د ده زوی همایون د تاج او تخت څښتن کیږي. دا وخت د شیر خان او همایون ترمنځ جگړه او مقابله پیل کیږي. دغو جگړو او مقابلو شیرخان ته د هندوستان پاچاهۍ تاج او تخت په برخه کړو. دهغه تر ټولو غوره پاچاهانو په ډله کې وشمارل شو. د همایون د پاچاهۍ په وخت کې د بنگال او بیهار د وارو صوبو د مغلو د سلطنت د اداري څخه وتلی وي. په تې د دغو دوارو صوبو د همایون د سلطنت سره کوم اړیکی نه وو. شیرخان په دغو دوارو صوبو باندې د خپل زور او تدبیر په واسطه خپل تسلط او واک ټینگ کړ.

موږ د سلطان محمود په برخه کې مخکې څرنگه څه یادونه وکړه. د ده د همایون په وخت کې خو ښه ده چې جو نبود ولوسی. همایون سخت یرغل پرې وکړ او د اسې ماتې یې ور کړه چې بیا یې د تل د پاره د پاچاهۍ خیال په مغزو کې ور ونه گرځیده. ترڅۍ وروسته همایون د چنار کلا د نیولو اراده وکړه. شیر خان همایون ته د دې کلا د سپارلو څخه انکار وکړ. د دې کار همایون په قهر کړ دغه

نو چې همایون پر زیات شمیر عسکر د دغه هدف د پاره روان کړل . شیر خان خپل زوی جلال خان د کلاه ساتلو دپاره موظف کړاو پخپله کوهستانی علي خواته ووت . همایون زیات زیار و یوست چې کلا ونیسي ولې ونیې نه شو کړای او بریالی نه شو . بالا خره مجبور شو چې خان ته یوه پوټی خپیری جوړه کړي . هغه وخت چې شیر خان ته یې د ده سره د وفادارۍ د وعدې کولو په مقابل کې پرېښوده . شیرخان د ده د زړه د داد په ځای کولو د پاره هغه و چې خپل زوی قطب خان ورسره ولیږه . همایون د یوه لیکلي سند په اساس بنګالا د شیرخان ملکیت و مانه آزادی و روسته شیر خان په خپله پامارنه په بهار کې مخالفینو ته چې تل به یې د ده پر ضد ساز شونه او د سرکښۍ کولې داروله . هغه وچې شیرخان د هغو مخالفینو په ازل کولو او د منځه وړلو پسې ملا وتړلې . په لږه موده کې یې په بهار کې خپل مخالفین مات اوله منځه یو وړل . په دې توګه سره په بهار باندې شیر خان خپل تسلط دوباره قایم کړ . په بهار برسیره بنارس او جونپور یې هم ترخپل تسلط او اداري لاندې را وستل . دغه وخت شیر خان په دواره لاسونو بې شمیره دولت پخپلو ورسره کسانو پسې وویشه . په مختلفو جګړو کې چې کوم مال دولت که سره وو او که سپین چې تر دغه وخته پورې د شیرخان لاس ته ور غلی وو ، د هغو زیاته برخه یې په هغو کسانو چې تر دغه وخته پورې یې په مختلفو جګړو او موقع کې د ده سره مرسته کړې وه وویشله . د نیول شو یو علاقو هغو خلکو چې تر اوسه پورې یې د ده سره یې مرسته نه وه کړې او حتی هغه کسان چې ده یې لا پخوا به پېژانده هم د دغې مرستې برخه یې برخې باقي نه شول . شیرخان په بې وزلو اوارو خلکو باندې بې شمیره جنسي او نغدې پیسې وویشلې . خپلو کسانو ته یې لوی لوی منصبونه ورکړل . لنډه دا چې همرستو واسي ریالی یې جاري کړې چې حتی پردي یې خپل کړل . په دې توګه سره د ده قوره کړ دار او په عمل شهرت هرې خواته تیت شو . کوم ځایونو ته چې د ده د سخاوت ، عدالت ، جرات ، او شجاعت آوازې رسیدلې وې د هغو ځایو او خلکو

خان د ده لیدو او په ده پسې د را ټولیدو د پاره ژر روان شول . د هندوستان د مختلفو علاقو څخه په زړور او بهادر پښتانه ورته راتلل او تر څنګ لاندې یې ټولېدل . د گجرات څخه هم خپلې مشران او امرا بیهارته راتلل او د شیر خان سره نوکران شول . لنډه دا چې په لږه موده کې زښت ډیر لښکر د شیر خان په گرد چاپېره راټول شول .

په دې توگه سره تیموري خپل فوځي قوت نور هم زیات کړ . په دې بر سېره یې د خپل فوځي قوت د زیاتوب د پاره ځینې نور اقدامات هم وکړل .

د دوو درېو کلونو په موده کې یې خپل قوت دومره مضبوط کړ چې د شیر ورت په وخت یې کولی شول چې د گورگانیانو حکومت سره لاس او پنجه نرمه کړي .

## چنار کلا

په دغه وخت کې همایون د گجرات او مالوه د نیولو او ایل کولو څخه فارغ شو او بیرته اگرې ته راغی . دلته یې په ډېره ارامۍ او دا ډه زړه سره خپلو کارونو ته دوام ورکړ . ولې د شیرخان سره هم د شپې او هم د ورځې له خوا د خپل سلطنت د کلکوالي خیال وه . تیموري علاوه د همت او د ازاد قضاوت څښتن و د ده سره په ټل د خپل هیواد د پر مختگ او فتوحاتو فکر و . همدا علت و چې د ده د لښکر په زور او د خپل ځوره تدبیر په ذریعه یې څو کلاوې ونیوې . اوس یې د بنگال په لور د تگ اراده وکړه .

یوه ورځ همایون د خپلو امیرانو او مشرانو څخه د شیرخان په برخه کې د پوښتنه وکړه ورته ووېل چې شیر خان دوه کلاوې ټینگه کړې دي څوارلس زر ترزره ټولې سوبې ونیسي . همایون چې دا وا وریدل نو وار خطا شو .

شیر خان ته یې سخت قهر راغی او ویې ویل چې دغو پښتنو سرکشي ورځ په ورځ زیاتوي . اوس دوی ته یو کلک ځواب ورکول په کار دي . هغه و چې د چنار کلا پر خوا یې خپل لښکر ته د تگ امر ورکړ . د ۱۵۳۷ ع کال د جنوري د میاشتې په ۲۷ نېټه شاهي لښکر د اگرې څخه د چنار خوا ته روان شو . د همدې کال د اکتوبر په میاشت کې تقریباً اس میله د چنار کلا څخه لرې یې تېکانه ولگوله . د دغه لښکر مشر رومي خان وه . ده

غونډه چې دکلا په برخه کې څه ناڅه معلومات ترلاسه کړي . ده غونډه چې په دې وپوهېږم چې دکلا په کوم برج باندې برید واره کړم او څنګه نقبونه ورته کوږدم ترڅو کلا په اسانۍ سره ونیسم . هغه وچې ده بوحیرانوونکي پلانونه جوړاوه . تو مورې خېل غلام محمد ناڅه وواهه ځان یې تلک شین او د څ ون و الیدا غونډه یکښې نقطې شول . تر دې وروسته یې خېل غلام ته ووېل چې اوس ته د پښتنو کلا ته ورشه او ورته ووایه چې زه د رومي خان غلام یم هغه زه بې ګناه ووهلم .

د همدې کبله زه را وتښتېدم او تاسو ته مې پناه راوړه. ددې د پاره چې در باندې پوه نه شي یو څه موده هلته اوسه په هغو دکلا او د دوی د لښکر په برخه کې دپوره معلوماتو د ترلاسه کولو وروسته راوتښته غلام د رومي خان د ویلو مطابق کاروایي وکړه او دکلا پر خوا روان شو .

کلا ته د رسېدو سره سم یې په بدګومنۍ په چټکو پول وکړ. پښتنو سم د لاسه پټۍ او ملهم پرې پورې کړل . په دې بر سېره یې دادګیرنه ورکړه د ارامي او استراحت هر ډول زمینه یې ورته برابره کړه.

تر دې وروسته یې پښتنو ته ووېل چې زه باید کلا او برجونه یې وګورم تر څو د هغې د ساتنې او مورچو جوړولو او د توپونو نصب کولو په ځای پوره پوره داسې بندوبست وکړو چې زموږ ګډ دښمن رومي خان ورننوتلی نه شي کړی د خپل ټول زور سره سره هغه ونیسي . پښتنو تو مورې ته د کلا ټول برجونه، بندوبست او په د ننه کې لښکر ورو ښود. تر دې وروسته غلام تر څو ورځو پورې په کلاکې واوسېده . او د ټول حال د معلومولو وروسته د کلا څخه وتښتېده او خپل لښکر ته بېرته ورغی . رومي خان ته یې ووېل چې ما ټوره کلا ولیده او د هغې ټولې ضعیفې او کمزورې نقطې مې ځان ته معلومې کړې .

کوم برج چې د کلا خوا ته دی هغه تېره کړې او همدې خواته سرنګ ووهې تر څو خلک کلا ته نژدې ورانه شي او مورچې جوړې نه شي کړی . رومي خان په همدې توګه سره کار روایي وکړه . د هغه خوا له برج ته مخامخ یې یواوی توپ نصب کړ . او بیایې کلا محاصره وکړه او مختلف صاحب منصبان یې په مختلفو ځایو باندې

وتاکل.

تر هغې وروسته رومي خان همایون ته ځان ورساوه او عرض یې وکړ چې
که چېرې اجازه راکوې نو په کښتۍ کې به د ژړګي پوښتنې مقار جوړ کړم. دا د دې
دپاره چې که کوم خلک تواري چې د سیند له خوا کلاته ننوزي نو د هغه دې مقار
څخه په ګولۍ پرې او ووژي. همایون اجازه ورکړه رومي خان په دریو ورځو کې بانډې
دیوه لوی مقار جوړول پیل کړل دغه مقار یې دومره لوی او جګ کړ چې تر ټوله
کلاتري مقاومت. دغه مقار په شپږو میاشتو کې جوړ شو. تر هغې وروسته رومي خان
پاچا ته وویل چې که ته اجازه راکوې نو تر هغو به ګولاته نژدې کړو. تر هغو پس
کلکوالی لږ ... نو د ولاندې څه ونیول شي. د یوې خوا څخه به د مقار د سر څخه ګولۍ
پرې اوري او له بلې خوا څخه په سپاهیانو د ښکلو خوا څخه هم حملې پرې پیل
کړي. په دې توګه سره به دښمن زر تر زره د مقاومت یو وړانه شي.

همایون دغه پلان ومانه او اجازه یې ورکړه دغه و چې د هرې خوا
څخه یې په کلا بانډې پرغلونه پیل کړل. لیسه شپه وه چې جګړه پیل شوه ګورګانیانو
په ډېر جرات او زړورتوب سره پرغل پیل کړ. دوی په پوره میړانه سره وجنګېدل
ولې کلا یې ونه شوه نیولی. تقریباً او مسره ګورګانیان په دغه جګړه کې ووژل شول.
د اورګیو د مقار یو ه برخه هم د ته شوه کله چې هم په کلاکې د ننه پښتانه یې دې داده وو چې
د همایون د لښکر په مقابل کې پوره مقاومت وکولای شي او محفوظ پوولي یې هم د رومي
چوري پیل کړې. په کلاکې د ننه کسانو یو شرط دا و چې که چېرې زموږ د سر امن وي
نو کلا به تاسو ته وسپارو. همایون دا شرط ومانه او کلا ور وسپارل شوه تر کلا نیولو
وروسته رومي خان د کلا په خپلو کسانو بانډې مظالم او سختۍ پیل کړې. څه وخت چې
همایون د رومي خان په دې عمل خبر شو نو ډېر خفه شو او وې ویل چې ځنګه چې ما د دښمن
سره د دوی د سر په امن وعده وکړه نو بیا د دغو مظالمو کول زموږ څه حق و. تر کلا نیولو
وروسته همایون هلته یو د شان او شوکت او خوشحالۍ څخه ډک مجلس جوړ کړ. د بنګال
حکومت او اکبر او د توپخانې افسرانو ته یې خوره انعامونه او سوغاتونه ورکړل. په
دغه اثنا کې همایون د رومي خان څخه وپوښتل چې د چنار کلا په برخه کې ته څه فکر کوې.

اتکاکې خبر ورته راورسېد چې د شېرخان لښکر د بنګال د پاره مونګير ته راغی. دوی د ښار دروازو ته ورواچاوه او خان خانان يوسف زی يې ژوندی ونيو او شېرخان ته يې ور ووست. همايون چې دا خبره واورېده سخت خفه شو ورځ يې ده ميرزا عسکري راوغوښت او ورته ويې ويل چې په دغه نازک وخت کې ته زما ملاتړ شه. همايون نوموړي ته زيات زيات دولت ورکړ. څو ورځې صاحبمنصبان او قوماندانان او عسکر يې په واک کې ورکړل او د شېرخان پر خوا يې د روانېدو امر ورکړ. همايون دا هم ورته وويل چې څه وخت چې ګرمي څه نوره شي او کله کرام نومي ځای ته ورسېدې، نو د شاهي لښکر انتظار به باسې. د دغه پلان سره سم عسکر روان شول. په دغه اثنا کې خبر ورته را ورسېده چې شېر خان د رهتاس کلا ګرد چاپېره لارې نيولې دي. ميرزا عسکري همايون ته د دغې وضعې خبر ورکړ. هغه وخت چې همايون ژر تر ژره ځان اونګور ته ورساوه. هلته د شاهي فوځ قوماندانانو لکه ميرزا عسکري او [illegible] لور هم ورسره يو ځای شول.

همايون د قوماندانانو او مشرانو سره مشوره وکړه او د هېلې څرګنده يې داسې تصميم [illegible] کړ چې [illegible] ورځې [illegible] په همدغه مبارکي ځای کې پاتې شي تر څو د دهلې څخه لښکر او جنګي سامان ورته راشي. بيا به تر برسات وروسته جګړه پيل کړي. ولې ځينو مشرانو د ده دغه تصميم مخالفت وکړ او ويې ويل چې شېرخان به دا فکر کوي چې پاچا د سيند څخه د تېرېدو او له کښته منطل دی. په دې [illegible] سره به دی [illegible] دلاوره شي او د سيند څخه را پورې وځي. د دې د پاره چې شېرخان زړه ور نه شي او را پورې نه وځي، ښه به داوي چې سمدلاسه په شېرخان ور ودانګو. د همايون مدا مشوره خوښه شوه او لښکر ته يې تر سيند پورې وتلو امر ورکړ. څه وخت چې لښکر د سيند څخه پورې ووت او خبر ورته راورسېده چې د پښتنو لښکر شاهي لښکر ته ډېر نژدې را روان دی. په دوهمه ورځ تعقيب کوونکی لښکر مخ ته ورته راغی. څه وخت چې شاهي لښکر چوسه نومي ځای ته ورسېده او د ځای [illegible] خوا څخه ګرد غبار او [illegible] را پورته شوي. له هغه وروسته څرګنده شوه چې شېرخان په خپله د يوه زبردست لښکر سره را روان دی.

همايون د خپلو مشرانو مصاحبينو او قوماندانانو سره مصلحت وکړه او ورته
ووېل چې شېرخان نوي (۹۰) ميله واټن وهلى او راغلى دى، دغه دى ګېله دده ټول عسکر
او آسونه ستړي شوي دي. زموږ آسونه او عسکر آسوده او د جګړې دپاره تيار دي. نو ځکه
په کار دی چې همدا اوس دده سره په جګړه لاس پورې کړو. د پاچا دا نظر خوښ شو.
د شېرخان لښکر هم مخامخ ورته را روان و. دواړه لښکرې يو بل ته مخامخ شول.
اردو او مهاجمو پورې دواړه لښکرې يو بل ته مامخ پرتې وې. ورې ورې نښتې او
حملې به يې په يو بل باندې کولې. هره ورځ به د دواړو خواوو څخه پرشمېر ځوانان وژل
کېدل. اردو او مهاجمو ورسته يوه ورځ تابېره سخت باران په اوريدو شو او د شېرخان
د لښکر ځای يې سخت اوبه کړ. شېرخان خپل لښکر د دغه ځايه اته ميله شاته وتمباوه.
او د يوه غره په لمنه کې يې خيمې ودرولې. د دغه کار دا و، او تر منځ ور ځلې ورې
ورې نښتې له منځه يوړ وې. همايون داسې فکر کاوه چې شايد شېرخان صلح وکړي.
هغه و چې شيخ خليل ئې ورولېږه چې شېرخان صلحې ته راضي کړي. شېرخان
ورته ووېل چې که چېرې همايون د چنار کلا ماته راپرېږدي نو به صلحه وکړم.

شيخ خليل خط و ليکه او همايون ته يې وليکل چې شېرخان په دې
شرط صلحه کوي چې چنار کلا ور کړې. ولې همايون او ور سره کسانو يې دا
خبره ونه منله او صلحه ونه شوه.

سبا ته د شېرخان لښکر د همايون په لښکر باندې سخت يرغل وکړ او ګډ وډ يې
په کې واوستله. تر ډېره پورې شاهي لښکر ګډ وډ تيت پرک و. همايون چې دا
وضعه وليده نو پخپله په آس باندې سپور شو. درې سوه سر پرې پکړي عسکر د څلورو
خواوو نه ورسره روان وو. په دغه اثنا کې پاچا وليدل چې د دښمن يو زبردست
جنګي فيل مخامخ را روان دی. هغه و چې د خپل يوه سپاهي د لاسه يې نېزه واخيسته
او پخپله يې په فيل باندې حمله وکړه نېزه د فيل په تندي باندې ونښته او پکې ناوته. په
فيل باندې سپاره يوه تن په پاچا باندې د نېزې وار وکړ. نېزه د پاچا په لاس باندې
ولګيده. د شېرشاه هوتنو عسکرو کوشش وکړ چې نېزه د فيل له تنه څخه راو
باسي ولې ونه يې نه شو کړای. هغه و چې نېزه د فيل په تنه کې پرېښوده.

د همایون لښکر په اوږدو کې په ډېر جرأت سره جنګېدل. ولې دښمن حمله دومره زوروره وه چې د همایون عسکرو د هغې په مقابل کې استقامت ونه شو کړای. نو ډېرو د تېښتې لاره ونیوه دې کار باچا هم دې ته مجبور کړ چې په تېښته لاس پورې کړي. همایون په تېښته تېښته کې د سین غاړې ته ور سېده. په بازنومي فیل باندې سپور وه. فیل ته یې په د ډېر مینې سره ووېل چې پر مخ ځه. ولې فیل په مخ ولاړ نه شو. نو د وروسته په خپل آس باندې سپور شو او هغه یې په سین ورګډ کړ. ولې هغه د دې ور نو تونه ووت او همایون په سین کې واوېده.

## نظام سقاو

هغه وخت چې همایون په اوبو کې واوېده دغه وخت نابېره یو سړي مشک د هرا ښکته وکړ او همایون ته یې ځان ور ورساوه. باچا ته یې په اشارو سره ووېل چې مشک ونیسه. هغه مشک ونیوه او په دې توګه سره د سین څخه پورې ووت. همایون د دغه سړي څخه د ده نوم وپوښته هغه ورته ووېل چې زما نوم نظام دی. باچا ده ته موږي سره وعده وکړه چې تا به په تخت باندې کېنوم.

د همایون ځینې عسکر او ملګري د سین څخه پورې وتل. ولې ځینې په دغه سین کې ډوب شول. په هر صورت همایون روغ رمټ ولې ډېر وېرېدلی خلاص شو او ځان یې اګرې ته ورساوه. اګرې ته د رسېدو سره سم خبر شو چې شېرخان د ده په لټه پسې را روان دی. په دې پسې سم دا خبر هم ورته راورسېده چې شاه محمد پښتون د ده مخه نیولی دی. د دغو خبرو نو ډېر سخت وېراوه ولې بیا هم هر څه په خیر سره تېر شول او کومه قوي پېښه هرګاده نه شوه.

په دغه جګړه کې د همایون د لښکر یوه ډېره برخه د منځه ولاړه. اتیازره سپاهیان د پله د ماتېدو له کبله په سین کې ولوېدل او غرق شول. په زرهاوو کسان ووژل شول او په زرهاوو نور ژوندي ونیول شول.

## شېرخان د یو پښتون او نېکزړي انسان په حیث

د همایون د ماتې او تېښتې په وخت کې د نوموړي ښځه حاجي بېګم د خپلو مینځو سره د جګړې په میدان کې پاتې شوه. څه وخت چې شېرخان په فاتحانه

## د همایون سرګرمي

همایون که څه هم ماتې وخوړه ولیدې دې سره سره یې بیاهم زړه نه کاوه چې په اسانۍ سره د هند د تاج او تخت څخه لاس په سر شي. هغه وخت چې اګرې ته ورسید نو یې د خپلو ورونو سره لیدنه او کتنه وکړه. خو ورونو مناسب ځواب ورنه کړ چې هغه هم د ده سره به نه و، ولې هر څنګه چې وخت ډیر نازک و او د تاج تخت د لاسه وتلو سوال و، نو د همدې کبله یې د شیرشاه په مقابل کې خپل منځي زړه بد والی او مخالفتونه یوې خواته پریښودل. نو له د همایون ملاتړ وکړ. په دې برسیره ځینې نور مشران او بانفوذه کسان هم ورسره مل شول، هغه وچې د لښکر په بیاتړ تیبدو او او تنظیمولو یې پیل وکړ. نو لو خپل ملاتړ لښکر یو ځای ته راټول کړ او د شیرشاه سره د جګړې په تیارۍ بوخت شول. دلته همایون د خپل تاج او تخت د بیاترلاسه کولو تیارۍ بشپړه کړه.

شیرشاه هم د هندوستان مختلفو برخو او علاقو ته خپل سرداران ولیږل تر څو د همایون نظم ونسق برابر او خپل قوت یې مضبوط کړي.

## د جګړې تیاري

همایون د خپل فوځ په تیارولو او منظم کولو باندې څو میاشتې تیرې کړې. تر څو میاشتو تیرولو وروسته یو ځل بیا د شیرخان سره د زورازمویلو د پاره تیار شو. همایون داخل یو لک قوي فوځ تیار کړ او په ډیر جوش او خروش سره د قنوج خواته روان شو. شیرشاه قطب خان ته امر وکړ چې د همایون مخه ونیسي. همایون خپل دوه وروڼه میرزا عسکري او هندال د قطب خان مقابلې ته راستول. څنګه چې لومړي ځای ته نژدې د دواړو خواتر منځ سخته جګړه وشوه. په دغه جګړه کې قطب خان ووژل شو او لښکر یې تیت پرک شو. دواړه وروڼه په داسې حال کې چې بریالي شوي وو وبیرته خپل لښکر ته ستانه شول. دغه بری د همایون جرات او حوصله زیاته کړه. دې په دې دا ده شو چې نور شیرخان زما مقابله نه شي کولی.

قطب خان د شیرشاه زوی و. نو ځکه په شیرشاه باندې ډیر ګران و. د زوی د وژل کیدو په خبر باندې نو ځکه ډیر خفه شو. ولې څرنګه چې شیرشاه ډیر باجرات، زړور او باستقامته انسان و نو د همدې کبله یې د غم دغه اثرات د خپل لښکر او ملګرو

په منځ کې ښکاره نه کړل او ویل به یې چې داخو د یوه زوی قرباني وه. زه په دغه لاره د خپلو زامنو قربانۍ ته تیار یم. له دې داچې شیرشاه په دې توګه سره د خپل عسکرو احساسات د پرېوتلو څخه وساتل او د جګړې په چالونو پوخت شو. همایون قنوج ته نژدې ورسید. شیرشاه هم د ډېر خوږ زړه لښکر سره د ګنګا سین بلې غاړې ته ورسیده او خیمې یې ولګولې. دواړو حریفانو تر منځ سین حایل و. د همدې کبله جګړه نه کېده او بې ځایه ځنډ ته تدبیر و نو لګیا وو چې څه وکړو. د همایون لښکر تر پخوا زیات و. په دغه اثنا کې ځینې نور کومکي عسکر هم ورته را ورسېدل، په دې توګه سره دده قوت نور هم زیات شو. ولې د شیرشاه عملي پوهه، حکمت او د سپاهیانو مرسته تر همایون څرګند غوره والی درلود. د همدې کبله همایون جګړه نه کوله او زیاته یې پوښت چې جګړه نوره هم وځنډوي. په دې توګه سره دري میاشتې تېرې شوې.

د شیرشاه حوصله ورځ په ورځ تنګیده. ده زر تر زره فیصله کوونکې جګړه غوښته. هغه وچې همایون ته یې پیغام واستوه چې یا ما هغې خوا ته (پورې غاړې ته) د روغوا ره او یا ته دېخوا (دغې غاړې) ته راپورې وځه او جرات وکړه. ترڅو دغه معامله خلاصه شي. د بې ځایه وخت تېرولو او ضایع کولو څخه څه جوړېږي.

همایون ځواب ورکړ چې زه هغې خواته درځم. ته خپل لښکر دوه درې کروهه شاته یو زه تر څو زما لښکر ته ځای په ځای کېدو د پاره ځای پیدا شي. هغه و چې شیرشاه خپل لوښ دوه دري کروهه ترشا کړ.

## د شیر شاه ځوانمردي

په دغه اثنا کې یوه قوماندان شیر شاه ته مشوره ورکړه چې څه وخت چې د همایون نیم لښکر تر سین را پورې وځي او پاتې نور یې د راپورې وتلو په حال کې وي، نو باید په هغوی حمله وکړو. په دې توګه سره به موږ په دې بریالي شو چې هغه له سخت تاوان سره مخامخ او لښکر به یې په سین کې ډوب کړو. که هم په جګړه کې د دښمنۍ قواوې د خپل بریالیتوب د پاره د هر ډول طریقو څخه کار اخلي او د دښمن په مقابل کې د هر ډول غلطۍ او فریب ورکولو زیار باسي. شیرشاه ته چې کوم نظر دغه قوماندان او مشاور ورکړ په رښتیا هم د دښمن د مغلوبولو

دپاره ډېر قوي وه ولې شېرشاه دغه نظريه ډېره بې اعتنايي سره رد کړه . ده وويل چې زه ته خبره د ځوانمردۍ څخه ډېره لرې ده چې ما دې د همايون لښکر ته د راپورې وتلو بلنه ورکړې وي او بيا دې زه د هغه سربندو که او غلطي وکړم . زه دې خپل فوځ او مړي د جګړې ميدان ته راولې بيا به زه جنګېږم . په دغه وخت او موقع کې د دښمن ته دو که ورکول د جرائت او شجاعت منافي دي . که څه هم زما لښکر د همايون د لښکر نيمايي دی ولې زه د خپل فوځ جرائت منداته او د مېړانې څخه د ډکې جګړې ايډل غواړم" .

# يوولسم فصل

## همايون د هندوستان څخه و تښتيد

## دگهسان جگړه

د ۱۵٤۰ کال د محرم د مياشتې لسمه نېټه وه چې د همايون او شيرشاه قوتونه لواړ ته مخامخ و اوښتل. د همايون ټول لښکر تر سيند پورې ورته او ميدان ته ورغی. همايون څرنګه چې پوه شو لا اوښت شو. شيرشاه هم خپل لښکر ته حرکت ورکړ. د شيرشاه د لښکر سپه سالار خواص خان (۱) د همايون د فوځ په ډله باندې چې د فوځ په مخکې و ډېر زور ور حمله وکړه د شيرشاه د عسکرو يو غل دومره سخت او زورور و چې د همايون د لښکر مخ يې ته وګرځيد او سخت تاوان ور واوښت. د همايون د لښکر يله ډله لا د مخه شوې نه شيرشاه د عسکرو په ښي او چپ اړخ باندې يې سخته حمله وکړه او ټول زياته حد يې شاته وتښتول. په دغه اتفاقي شيرشاه په خپله د خپلو عسکرو سره د دوی مرستې ته خان ورساوه. تر لږ وروسته يو په بل باندې عامې حملې پيل شوې. په زړه ور او قوي ډول سخت جګړې په ميدان کې پرېښودلي. سره له هغو هڅو او د جګړې په

---

(۱) دا د همه خواص خان ورور و چې مخکې يې يادونه وشوه او په جګړه کې ووژل شو. شيرشاه دده هم د خواص خان لقب ورکړ او په همدې نوم مشهور شو.

دګرګې د وینو لښتې روانې وې. د دواړو خواوو د میړانې او زړورتوب څرګندولو کې تېر وو. د همایون دېر لږ فوځ په مقابل کې د شیرشاه پنځوس زره لښکر په ډېره منظمه توګه سره جنګېده. د شیرشاه په لښکر کې جوش خروش او ولوله هم زیاته وه. پښتنو عسکرو د همایون تر عسکرو زیاته میړانه او جرأت څرګندا وه.

په دغه وخت کې شیرشاه پخپله هم په ډېر زړورتوب او پوره جرأت سره جنګېده. او خپل لښکر یې په داسې توګه سره جنګاوه چې د همایون د عسکرو د مخکنیو برخو سره سره یې هم حتی یو قدم شاته نه تللو. بالاخره مغولو ماتې وخوړه او تیت پرک شول. په دغه جګړه کې د همایون ذاتي شجاعت او زړورتوب د یاد وړ دی. نوموړي تر ډېره پورې د دښمن د حملو په مقابل کې مقاومت وکړ. ولې بالاخره یې داګرې پر خوا په تیښته پیل وکړ. په دې توګه سره د دغې جګړې فتحه هم د شیرشاه په برخه شوه.

شیرشاه تر دې وروسته خپل لښکر د همایون په تعقیب پسې واستاوه. په اګره کې همایون ته خبر ورسېده چې د شیرشاه لښکر ستا په تعقیب پسې را روان دی. همایون و دارېده او د لاهور خوا ته یې مخه کړه.

## دشیر شاه غوره عمل

په تاریخونو کې داسې پېښې څه کمې نه دي چې یوه دښمن هیواد ته ماتې ورکړه د هغه د ښارونو او کلیو نیولو ته یې لاس اچولی دی. شیرشاه چې څه وخت همایون ته ماتې ورکړه نو یې تعقیب کوونکو ته یې بایده د هغه د ښارونو او کلیو د نیولو هدایت ورکړی وای. ولې دغه غوره عمل او لوړ کردار چې سړی ګوري تر سیر انیږي. هغه حکم چې نوموړي تعقیب کوونکو ته ورکړل چې همایون هیڅ کله ونه وژني، بلکه د هغه تعقیب په داسې توګه سره وکړي چې هره ورځ د یوې منزل واټن ترمنځ وي او په روغه سره د هندوستان تر پولو واوړي. د شیرشاه دغه شریفانه عمل د ده د غوره اخلاقو بې مثال دی. ګڼه هیڅوک خپل دښمن ژوندی نه پرېږدي چې هغه یو ځل د ده د پاره بیا یو خطر را ولاړ کړي. ولې شیرشاه د همایون سره دغه شریفانه عمل وکړ، تر هغو د نورو د پاره هم د عبرت یوه

خلکو ته مراجعه ورکوي او ... يې . څه وخت چې پورن مل د شیرشاه په خدمت کې حاضر شو او د خپلو ګناهونو او سهوو بخښنه يې وغوښته نو شیرشاه هغه وبابه اوویلې نه وانړه .

د چندیرې خپلې میرمنې چې د شیرشاه وړه دې کار چې پورن مل يې وباچه جوړه شوي نو د شیرشاه پرخوا را روانې شوې او خاوندونه يې تر د مړ ورې راووسول . دوی شیرشاه ته د خپلې بې وزلۍ ، بېکسۍ ، مظلومیت او د پورن مل د بې رحمیو داستانونه واوروول. شیرشاه د دوی د خولې څخه د دغو جوروپه اوریدلو سره ډیر غمژن شو . د میرمنو ځانې څخه یوې ټنې شیرخان مخاطب کړ او ورته ويې ويل چې ای باچا ! موږ به د شپې د خوبه ولاړېږو او خدای ته به موږ زاري کوو . چې موږ ته يو داسې پاچا را ولېږه چې موږ د دغه ظالم څخه خلاص کړي عزت او ابرو مو وساتل شي . زموږ دا یقین دی چې زموږ زاريو او دعاوو تاثیر وکړ او خدای تعالی ستاسو په شان عادل پاچا زموږ مرستې د پاره را ولېږه . که چیرې تاسو پورن مل تر تسلیمیدو وروسته هغه بخښې او د خدای مظلوم بندګان د پورن مل د مظالمو څخه نه خلاصوئ. نو به د قیامت په ورځ زموږ لاس ستاسو کالا او ستاسو ګریوان وي .

د دغو خبرو شیرشاه ډیر غمژن کړ . څرنګه چې شیرشاه یو پرهیزګاره سړی او تل د خدای د ډیرې نه ورېږيده . میرمنو چې شیرشاه په داسې حالت کې ولیده نو د ځواب اوریدلو ته ټولې بوخوښ شوې . شیرشاه د دوی سره خپله همدردي اوښوده او دوی څرګند کړ او ورته ويې ويل چې ما پورن مل بخښلی دی . مسلمان چې څوک وبخښي نو بايد بيا په هغه پابندي وفا وکړي . ما څنګه چې وعده وکړه د هغې کېله خپله وعده نه شم ماتولی . ولې بیا به هم زه د علماوو څخه وپوښتم چې په دغه باره کې شرعه څه حکم کوي او زه څه وکړم .

هغه وخت چې علماوې را او غوښتل او ورڅخه ويې ويل چې ما پورن مل ته پنا به وای اوس څرګنده شوه چې دده د خپلې علاقې په شريفو خلکو پانګې سخت ډول ډول ظلمونه کړي دي ؛ ده د لاسه نه د خلکو مال او ځانونه، عزت او ابرو وېره امن کې وه . د هغې کېله يو زيات شمير پنځې ماته راغلې د پورن د مظالمو او ډیر نو

عرضه‌یی وکړه څرنګه چې د هغه ظالمانه جرمونه ثابت شول نو اوس زه غوښتنه کوم.
علماو د پورنمل دوژ او فتوی ورکړه. هغه و چې شیرخان د پورنمل د خیمی
محاصره کولو امر ورکړ. پورنمل او ورسره ملګری یې د جګړی دپاره تیار شول .
بالاخره پورنمل ووژل شو. شیرشاه د رایسین حکومت یوه بل صاحب منصب
ته وسپاره او پخپله اګری ته راغی .

# دوولسم فصل

## آخري دور

### د شېرشاه پوهه او غوره تدبيرونه

تردې وروسته شېرشاه دا غوره او ضروري وګڼله چې په هېواد کې دننه شور ځوږ ته ارام ورکړي . دا هغه چې هم پوهېده چې تر څو پورې په هېواد کې په کامله توګه سره کراري او امن را نه شي تر هغه وخته پورې هيڅ يو تعميري کار او پلان نه شي تطبيق کېدای. هغه ته خپلو ځينو مشاورينو د دګن د نيولو مشوره ورکړه . ولې شېرشاه وويل چې تر ټولو لومړی د خپل کور نظم ونسق او ترتيب نه سر وي دی. هغه وخت چې په دې کار بريالی شم بيا وروسته پاتېنيو کارونو ته پاملرنه ضروري ده. د پوهانو داسې کار نه وي چې د سلطنت داخلي برخو ته هيڅ پاملرنه ونه کړي او يوازې خارجي برخو ته متوجه شي. دګن فعلا بېروني برخه ده. زه غواړم چې لومړی د داخلي برخو نظم برابر کړم. هغه وخت چې لښکر يې تيار کړ او تر ټولو لومړی يې د مار وار خوا ته مخه کړه. د شېرشاه دا قاعده وه چې لښکر به يې هر چېرته وار ورل هلته به ټول لښکر د خټو او تيګو موقتي کلا جوړوله. د دغو کلاو وخته به يې کار نه اخيست . ولې د جوړولو څخه يې د ده مقصد دا و چې لښکر بېکاره کښېني. عسکر بايد څه نا څه کار حتما وکړي تر څو د خوارۍ او زحمت کښلو سره عادي شي. د دې په څنګ کې د ده دا فکر هم و چې که چېرې

د بېرته راستنېدو په وخت کې په دغه لاره راپېښ شو او د کوم دښمن سره مخامخ شوم نو دغه کلاوې به یې په درد و خوړې. د دغو کلاوو د جوړولو څخه د شېرشاه بل مقصد او هدف دا هم وچې کېدای شي وخت او ناوخت کوم لاروي، مسافر او یا د وزلي ترې د ضرورت په وخت کې استفاده وکړي. د مارواړ راجه هم د جګړې تیاری کړاو. څه وخت چې شېرشاه ور ورسېد نو د دواړو لښکرو تر منځ جګړه وشوه. د راجه لښکر په پوره جرائت سره جنګېدل. ولې د شېرشاه سپه سالار خپل لښکر په داسې ملحمه او تورو توکه سره وجنګاوه چې شېر شاهي فوځ غالب او راجه سخته ماتې وخوړه. په دې توګه سره په مارواړ باندې هم د شېر شاه قبضه وشوه. تر دې وروسته د شېرشاه مخالفو قوماندانانو ناګوره اجمیره او جودپور ونیول. په دې پسې شېرشاه د چتور قومي کلای نیولو نیت وکړ. د چتور راجه لا د مخه وېرېدلی وه. څه وخت یې چې د شېرشاه د راتګ خبره واورېده نو د کلا کیلۍ یې په خپله د شېرشاه قوماندانانو ته وسپارلې. د دغه کوم جنګ څخه پرته د شېرشاه لاس ته ورغله.

## د کالنجر نیول

تر دې وروسته شېر شاه د کالنجر د کلا نیولو د پاره ملا وتړله. د دغې کلا د نیولو په جګړه کې په خپله شېر شاه هم ووژل شو. د دغې جګړې د پېښېدو او د نورو موري کلاد نیولو اصلي علت دا وچې د کالنجر راجه د شېر شاه یوه یاغي ته پناه ورکړه. شېرشاه د یاغي د ور سپارلو غوښتنه وکړه. ولې راجه بالکل انکار وکړ. هغه وچې شېرشاه په خپله د یو شمېر فوځ سره کلا کلابند کړه. د کلا علاوه خواوو ته یې دومره اوږدې لوړې مورچې جوړې کړې چې د هغو څخه حتی په کلا کې دننه خلک لیدل کېدل. د دغه کلا بندي اوږده شوه. بالآخره شېرشاه امر وکړ چې په کلا باندې سختې ګولۍ و اوروي. دی په خپله هم یوې مورچې ته ولاړ او په کلا دننه ځنګو باندې یې غشي اوورول.

په کلا باندې سختې ډزې او ګولۍ اوورول روان وو. ناڅاپه یوه ګولۍ په دېوال ولګېده او بېرته یې بېرته راوالوته او د نورو ګولیو په ذخیره کې ولګېده. په ذخیره کې اور ولګېد. ذخیرې ته نږدې چې هر څومره خلک وو ټول یې وسول او ځینې یې بیا سخت

# دیارلسم فصل

## د شیرشاه د غوره اخلاق او د عمل نمونې

د شیرشاه د اخلاقو او عاداتو اندازه د هغو پیښو څخه کېدای شي کړمی چې تر اوسه پورې بیان شوې دي . ولې په دغه برخه کې غواړو د اوموږي دا وند ځینې داسې پیښې بیان کړو کومې چې د ده د کوچنیتوب حالت په نوابې څرګنده کاروونه او د اوموږي تورو چال چلن د پاک نفسي او انصاف غوښتني اړخونه ترې را معلوم شي .

### د کوچنیتوب حالت

شیرشاه لا ماشوم و چې په زړه کې یې د یوه لوی سړي د جوړېدلو هیله پیدا شوه . دی ډیر زیارکښ او کارشي هلک و . بې کاره کښېناستلو هیڅ خوند نه ورکاوه . د عقلي کورني توره ترو ته یې هم ویل چې کار وکړي . یوه ورځ یې خپل پلار ته وویل چې ماهم چاره ته نوکر اوبا په کوم کار بوخت کړه . پلار یې ورته وویل چې ته لا کوچنی هلک یې . یو څه موده صبر وکړه . څه وخت چې لوی شې څه کار درڅخه اخلم . تر اوسه پورې ستا عمر د کوم کار یانو کړی د پاره مناسب نه دی .

هغه وخت چې خدای اوی کړی لوستا د لیاقت او پوهې سره سم به تاته نوکري پیدا کړم .

شیرشاه په دغه برخه کې د پلار له خوا محروم شونو مورته ولاړ او هغې ته یې ووېل چې ته زما سپار ښتنه زما پلار ته وکړه چې کوم کار را کړي . موریې خپل مېړه ته ووېل د شیرشاه پلار بیا هغه پخوانۍ خبره چې لاتر اوسه پوري د نوکرۍ نه دې وکړه . ولې شیر شاه تینګار کاوه بیا لاخدره پلار یې دی بوره رئیس ته بوت او ورته وېې ووېل چې دا زما زوی دی . دی ډېر تینګار کوي او غواړي چې کوم کار ورکړي . رئیس دهغه عمر وکوت او وې ووېل چې دی لاتر اوسه پوري کوچنی دی . هغه وخت چې لوی شي نو به کوم کار ورکړم .

## دشیر شاه دځوانۍ خیالات

په کومو ورځو کې چې شیرشاه خپل پلار دجاګیره بندو بست په لاس کې نیولو د پاره والیږه . په هغه وخت کې دی نوی ځوان و . په دغه موده کې ددمطرز تفکر او خیالات د اموري دهغو تقریرونو څخه چې جاګیرته تر روان کهدو د مخه یې دپلار په مخ کې وکړل ښه څرګند کېدای شي . ده خپل پلارته عرض وکړچې زموږ د جاګیر په کلیو کې زموږ کار کوونکي ، سپاهیان ، دوستان او پهلوان اوسېږي . یعنې ځینې یې زموږ ملازما نځینې ځمکوال دي . زه هاته څم دهرو سره یو شان راشه درشه کوم او دعدل وانصاف څخه کار اخلم . که چیري په کوم یوه کې می کومه نیمګړتیا یا ګناه ولیده نو هیڅکله یې نه پرېږدم .

که څه هم زموږ ملازم وي یا ځمکوال او پهلوان هم وي . په هره معامله کې دعدل څخه کار اخلم . که چیري د چا له خوا څخه تاته کوم شکایت رشو او د هغه په برخه کې ماته کوم سپارش وکړي نوزه لا اوس صپینه درته وایم چې هیڅ ډول سفارش په دغه برخه کې کار نه ورکوي .

تر دغو خبرو وروسته شیر شاه دعدالت او سیاست په برخه کې ډېر په زړه پوري تقریر وکړ . ده ووېل چې درعیت ښه والی دملک د سمسور تیا او د عایداتو زیاتوالی ، دعدل او انصاف څخه پرته هیڅ امکان نه لري . علما وایي چې په انساني

خو یې تر ټولو لوی او غوره خوی عدل او انصاف دی که چیرې پاچا د دغه خصلت څخه کار وانخلي نو نتیجه به یې داوي چې سلطنت مضبوط، خلک به آرام او آبادات په پریشانه وي، ددې په خلاف ظلم بدترین عادت دی، د ظالم کړاو په نتیجه کې ملک او رعیت دواړه بربادیږي او سلطنت زوال مومي .

د سیاست په برخه کې شیرشاه وویل چې دا نه اعلی ترین جوهر دی. د سیاست څخه پرته عدالت نه شي کیدای. ولې عدل او سیاست دواړه مسلمانانو حکامو او کارکوونکو ته د اسلامي شریعت د حدودو څخه بیرون نه دي. ددین او دنیا ټول کارونه د اسلامي شریعت سره تړلي دي. لنډی عیش نوش کې دوبیدل او تکبر پاچاهان د رعیت د حاله بې خبره کوي. د همدې کبله دداسې کارونو څخه ځان ژغورل غوره دي. د همدا رنګه وویل چې تر لاس لاندې کارکوونکو او رعیت سره باید تل په زړه پورې مرسته وشي. که چیرې دغه خلک خیانت، ظلم او داسې نور جرمونه وکړي نو د هغو سره د سخت سیاست څخه کار اخستل په دي. شیرشاه وویل چې جاګیر ته د رسیدو سره سم مې تر لاس لاندې ټول کسان په خپلو فرایضو او وجایبونه متوجه کړم. که چیرې دوی د نیک نیتی له مخې خپل فرایض سر ته ورسول نو زه به د دوی په تنخاوو کې زیاتوالی راولم، سوغاتونه او بخششونه به هم ور کړم. لاله دا چې د هره پلوه به دوی خوشحاله کړم. که چیرې ددوی نیت بد او په خپلو کارونو کې یې تنبلی کوله یعنې خپل فرایض یې سرته نه رسول نو به داسې سخته سزا ور کړم چې حتی نورو ته به عبرت شي. حسن خان د خپل زوی دغه تقریر په خاصه توجه سره واوریده. هغه و چې د خپل زوی په نیک نیتی او پوهې پانډې ډیر خوشحاله شو، د همدې کبله یې په ډیره مینه او درناوي سره رخصت کړ.

## عدل او انصاف دوی لویې پېښې

دعدل او انصاف په برخه کې د شیرشاه ډیری کار نامې مشهوری دي. د هغو د جملې څخه موږ یوازې دوه مثاله یې دلته لاندې راوړو :

یوه پیښه داسې بیانوي چې اتاوې ته نږدې ځمکه پیالګي د څو لحکو الو لس ماځ د عوا او نزاع پورته شوه. هغه و چې یو تن په کښې و وژل شو. قاتل

و تبشتېله .خلکو دهغه پلټنه وکړه .ولې د زیات لټون سره سره یې پته ونه لګیده. شیرشاه چې دهغې خبرې څخه خبر شو نو یې دوه تنه دغه کار د پاره وګو مارل چې په کوم ځای کې چې دغه‌سړی وژل شوی دی هلته ولاړشي او دونو په‌پریکولو پیل وکړي.کوم سړی چې هلته درشي اوتاسو دونو دپرې کولو څخه منع کوي‌همغه ککلاې ونیسي او ماته‌یې راولی .

دوی دواړه هلته ولاړل اود شیرشاه دهدایت سره سم یې‌دیوی ونی په پریکولو پیل وکړ.څرنګه چې یوی دواړه پرڅی واو اوونه ددوی مالکیت نه‌و نو همغه وچې دکلي یوسړی ورته راغی اودوی دواره یې دونی دپرې کولو څخه منع کړل ، دوی دغه سړی ککلك ونیو اوشیرشاه‌ته‌یې راوست.شیرشاه دغه سړی ته‌ووېل چې ته دونی دپرې کولو څخه خبر شوی ولې په همغه ځای کې چې دیوه سړی سر پرې کیده ، نه خبر یدې اوغافله وې؟تردې وروسته شیر شاه حکم وکړ چې‌د کلی ټول او سپینږیرې بندیان کړی. تربند وروسته‌یې ذړی ورځی مهلت ورکړ اوورته ویې ووېل چې په ټاکلی وخت کې دقاتل پلټنه‌وکړی او رایې ولی.کنه نوټول وژلم. دشیرشاه دغه‌امر دکلیټول خلك وویرول . دوی په‌پوره زیار سره دقاتل لټون پیل کړ.بلاخره په ټاکلی وخت کې‌یې هغه ونیو اوشیرشاه ته‌یې‌راووست. شیرشاه دقصاص په بدل کی هغه‌ووژاه او دکلي خلك‌یې دبند‌څخه خلاص کړل. دشیرشاه دغه دانصاف اوعدالت څخه دلك‌حکمونه وو‌چې هر چیرته بهسپینه او سره پراته‌وو او چا به یې د اخستلو جراءت نه‌شو کولی.مسافرانو به‌هم په‌شپه او ورځ دکومې ویرې څخه پر ته سفر کاوه.دغلو اولاروهونکو څخه نه بیریدل . شیرشاه دخلکو دمال او دولت دپاره داسې بندوبستونه وکړل چې هرسړی به‌د کور دروازې خلاص پریښودې او بېدیده به هیچا د اجراءت نه شو کولی چې دغلا په‌نیت دی دچا کور ته ننوځي .

د شیرشا دعدل او انصاف دوهم مثال تردې هم زیات عبرت ناك دی هغه دا چې‌دشیرشاه دیوه‌زوی نوم عادل خان و. همغه‌په فیل باندی سورشواوچکریې‌واهه. ناببره په‌یوه کوڅه‌تیریده . دغه‌وخت دیوه‌بقال میرمن پخپل کور کې‌لو ځه ناسته وه. دعادل خان سترګې پرې لګیدی . دده سره پان وه هغه یې د هغې خوا ته

ورواچاوه اولار. بنځه دیره حیرانه وه. هغه وچې توله کیسه یې خپل میړه ته وکړه. میړه یې هغه پان په لاس کې واخیست سم سیخ شیرشاه ته ورغی. د عادل خان ددغې وضعې بیان یې ورته وکړ او په دغه برخه کې یې دپاسخاست غوښتنه وکړه.

شیرشاه چې دغه کیسه واوریده لومړی ډیر وشرمیده چې زوی یې داسې شرمیدونکې حرکت کړی دی. بیا دقهر څخه تاو راتاو شو. د دربار حاضر خلك یې مخاطب کړل او ویې ویل: زما رعیت زما د اولاد په څیر دی زه هیڅکله د اخیستلو نه شم زغملی چې څوك دې زما د رعیت دیوه تن بې عزتي وکړي. که څه هم زما زوی یاېل څوك وي. دغه یې وویل او امریې وکړ چې فریادی په فیل باندې سور کړی او د عادل خان کورته یې ورولي.

دعادل خان میرمنې ته امروکړی چې دعارض مخې ته راشي عارض ته اجازه ده چې دغه دغه پان هغې ته ورواچوي.

د شیر خان دغې قطعي فیصلې او حیرا نوونکې حکم ټول دربار ریان حیران کړل. ددهدرعب او سام څخه په ټول دربار کې چو پـه چوپتیا شوه. هیچا دا جرات نه شو کولی چې د شهزاده سفارشي وکړي.

بقال ډیر هوښیاراو پوه وه. د دربار وضعه یې چې ولیده د هوښیار توب څخه یې کار واخیست. شیرشاه ته یې وویل چې ماانصاف اوعدالت لتاوه؛ تردې زیات زه نور څه نه غوارم. د شهزاده څخه ما خپل قصد واخیست. اوس زه دا حق لرم چې هغه وبخښم. مادې بخښلی دی. دعارض په دې خبرو باندې د شیرشاه قهرلږ څه کم شو.

دعدل او انصاف دغه مثال د زوی او پلار تر منځ و. دزوی اوپلار تر منځ طبیعي ده چې زیاته مینه وي. اوس نوتاسو پخپله فکر کولی شی چې شیرشاه دحق په لاره کې حتی دخپل زوی لحاظ هم نه کاوه.

# څوارلسم فصل

## انتظامي کارنامې

### د شیرشاه انتظامي پوهه او قابلیت

د یوه ملك آبادي، خوشحالي ، سیاسي قوت، ارامي، سمسورتیا او د رعیت پرمختګ د هغه هیواد د زمامدارانو په لیاقت ، پوهه، ښه نیت ، رعیت پرستي ، او انتظامي کارونو پورې تړلي دي . که چیرې زمامداران د دغو اوصافو څښتنان وي او د خپلې پوهې څخه په صحیح توګه کار اخیستلو باندې وپوهیږي او په رښتیا سره بې له ځنډه د خلکو پر مختګ او د ملك بهتري وغواړي داسې کمان کولی شي چې خپل ملك د نړۍ د ممتازو ملکونو په قطار کې و دروي . که چیرې پاچا د خپلو صاحب منصبانو، مشرانو ، حکامو او کارکوونکو څخه په درسته توګه سره کار کولو باندې پوه وي او د هیواد څخه هر وخت د نیمګړتیا و د لیرې کولو په فکر کې وي نو ملك به بې له شکه چې پرمختګ وکړي او یو غوره منزل ته به ورسیږي.

#### لوی کاروانه

شیر شاه تر هر څه پخوا د پنځه کاله پاچاهی وکړه. په د غه موده کې بې له ګجرات او دکن څخه پر ټول هندوستان تسلط درلود . د غه پنځه

کاله هم نوموړي په مختلفو ملکي کارونو باندي تېر کړ ، یاغیانو سرکښو او فتنه اچوونکو ته ماتي ورکړه. ولی کله چي موږ د هغه د سلطنت نظام ته غور او څېړني لاندي ونیسو نو حیرانېږو. دا ځکه چي ده د خپلو د غه وټولو مصروفیتو او پرېشانیو سره سره بیاهم په دغه لنډه موده کښي خپل هېواد ته یې د پاره د عدل، انصاف، امنیت او سمسورتیا یوه نمونه کړ. نوموړي په حکمراني، عدالت، سیاست او په انتظامي قوانینو پوه وه، او د هغو په انفاذ او طریقو دومره پا خبر و چي حتی ورځني جنګي مصروفیتو او هم د هغه مخه ونه شوه نیولای. ده د جنګي کار ونو په څنګ کې د خپل هېواد سمسورتیا او د رعیت ابادي او انتظام په ښه توګه سره برابر کړ. ده په یوه لاس کښي توره وه چي فتنه اچوونکي او مخالفان به یې پري تابع کړل په بل لاس کي یې داسي قلم و چي د هېواد شو یو ځایو ته د پاره یې یې قوانین او انتظامي نظم برابراوه. ده به ویل چي د ملکو نو نیول څه مشکل کار نه دی. ضروري او مهمه خبره دا ده چي د هېواد عمراني وضعه به کړای شي او داسي طریقي رامنځ ته شي چي د هغو له مخي د رعیت ځان او مال په امن کښي وساتل شي او امیر او غریب د واړه یو ځای ګذر وندو کړي.

شیرشاه د تیمور و شهزادګانو په څېر نه زده کړه کړي وه او نه په کومه شاهي کورني کي پیدا شوی وه نوموړی یو عادي سپاهي و. تل یې د یوه عسکر په څېر ژوند کاوه. ولي هغه وخت چي د پلار جاګیر ورو سپارل شو نو ده هغه په داسي توګه سره منظم کړ چي حتی تر ل خلک حیران شول. ولي هغه وخت چي پاچا شو نو یې غوره قوانین ترتیب او په داسي توګه یې نافذ کړل چي ډېر لوی تعلیم یافته حکمرانان او پاچاهان ورته په تعجب کي شول .

د شیرشاه قاعده داوه چي کله به یې کومه علاقه ونیوله نو ژر تر ژره به یې د هغي زراعتي پرمختګ او سمسورتیا ته پاملرنه کوله . دا ځکه چي هغه وخت کار ته زیات رواج لا درلود. زراعت د خلکو عامه پېشه او دغه د پرمختګ ضروري ځانګړه وه.

شیرشاه نه یوازي زراعت ته زیاته ترقي ورکړه بلکه د هغې علاقې ترلاسي

نیمگړ تیاری لکه فسق، فجور، غلا، چور، لاریو هنه ظلم وستم او داسی نور جرایم هم له منځه یو ړل. دهمدی هدف دپاره نوموړی ځینی بلکی نوی قوانین جوړ کړل او پخوانیو قوانینو ته یی ترمیمونه راوستل . ده دغه قوانین د وخت او عصر د غوښتنو سره سم جوړ کړل. دشیرشاه سره دخلکو ژوند دښه والی او دهیواد دغوره نظم دومره فکر وچی حتی کله به یی چی دخپلو زیردستانو سره خبری کولی نو حتما به یی درعیت اوهیواد د غوره والی او ازامنی خبری اتری و امنځ ته کولی . دده یو بل غوره عادت داوه چی په زیر دستانو با ندی دیر نه تهریده. ده به دوی ته کار ونه سپاره تر نظر لاندی تیر ول تر څو کومه غلطی اوسهوه تری ونه شی. دهیواد په هر گوټ کی یی خپل جاسوسان ټاکلی وو تر څو دمامورینو اورعیت ترمنځ دتولو معاملو منظم راپور ورته راشی. ددی کار لو یه گټه داوه چی مامورینو په رعیت باندی له داره ظلم او تیری نه شو کولی او خپله دنده به یی په ښه توگه سره سرته رسوله . دحکومتی ماشین وړی وړی پرزی هم دشیرشاه په اشاره د ندی گرځیدی دی په مرکز کی ناست و ولی دهیواد دلیږ ولیږ و گوټونو هره نیمگړتیا ورته معلومیده اوددغو نیمگړ تیاوو دلیری کولو اومخ نیوی دپاره به یی زر ترزره په اقدام لاس پوری کاوه. لنده داچی څرنگه چی ددی دجنگی پلانونو اوغوره نقشو په طرحه کولو مشهور و په همدی توگه سره نوموړی په ملکی کارو نو کی هم پوره وارد و.ده دخپل حکومت هره څانگه په کامله توگه سره ترمیم او په ښه توگه سره تنظیم کړه . دده ترمړینی وروسته دغه قوانین په ازی دده په کورنی کی جاری نه و و بلکی ځینو نورو پاچا هانو هم دشیرشاه دقوانینو څخه استفاده کوله .

دغرور او تکبر څخه دشیرشاه سخت نفرت و.دی پاچا و. که غوښتلی یی وای کبرو غرور یی هم کولی شو.ولی په ده کی ددغه عیب نوم هم نه و. ده دخلکو سره داسی راشه درشه کوله لکه چی ددوی د دلی څخه وی. په رعیت باندی سخت مهربان و.ولی ددی سره به که چیری کوم سړی کوم جرم اودقانون څخه سرغړونه وکړاه نو سخته سزا به یی هم ورکوله.دده ددی دول عمل نتیجه دا وه چی رعیت د قانون

شخه سرکشی نه شوه کولی ه دمالیی او محصول په ادا کولو کی به یی هیخ ځندنه کاوه. هرڅوك هر وخت دی ته تیار و چی حتی دپاچا دتش نوم شخه خپل مال او ځان قربان کړی. دشیرشاه په عصرکی رعیت چی څومره دنوموړی سره مینه درلوده اوداطاعت اظهار یی کاوه دبل هیڅ یوه پاچا په وخت کی یی نه دی کړی .

شیرشاه ددی اصولو بنسټ هم کیښود چی په کال اوبا دوه کلونوکی به یی یوځل هپل حکام دیوه ځایه شخه بل ځای ته بدلول. ده به ویل چی که چیری حاکمان په یوه ځای باندی تر دیره پوری پاتی شی نو دوی په سرکاری عساید اتوکی تصرف کوی اویادسیسی جوړوی. دهمه ی کبله زه دا غوره گنم چی دوی زرزر بدل کړم. لنده داچی دشیرشاه دغوره انتظام اودښه نیت له کبله د هیواد گوټ گوټ آباد او رعیت خوشحال و.

# پنځه لسم فصل

## دعامه او سوده‌گی کارونه

## سړکونه او سرایونه

په هغه وخت کی چه ن په ښان پاچه سړکونه وو. داشیاوو دوړ لوړا او ږلوا او تنګ راتګ دپاره سړکونو ډیرزیات ارزښت درلوده. شیرشاه د حکومت او رعیت دغه ډیرتیو لو زیات ضرورت په ښه توګه سره حس کړ. هغه و چې زوموړي خوسړکونه جوړ کړل. ددغو سړکونو په دواړو غاړو باندې یې ونې لګی کړی. ځای ځای یې داو بو بند و بست هم وکړ. یعنی کوهې یې وکیندل او مسافرو ته آسودګی او ارامی د پاره یې سرایونه جوړ کړل. د سړکونو په غاره یې دډیرو کوسونو په واټن ئو موږي سرا یونه آباد کړل. د ده تر ټولو مشهور سړک هغه دی چه د بنګال تر خلوج پوری دی. دغه سړك تقریبا دوه زره کوسه اوږده دی. یلی کسان ایله بیاله په غاړو رومیاشتو کی دیوه سر څخه بل سرته رسیږی. دا هغه سړك دی چې انګریزانو په هندوستان کی د خپل حکومت په وخت کی د جی ټی په نوم و یاله. دغه سړك اوس هم په همدی نوم مشهور دی. اوس دغه سړك د پیښور څخه کلکتی ته ځی.

د شیرشاه دوهم مشهور سړك هغه دی چی داګری څخه برهانپور ته رسیږی. برهانپور ددکن په پوله پروت دی. دغه سړك تقریبا شپږ سوه کوسه اوږدی. دریم سړك

د اگری څخه جودهه‌پور او چټورکړ هغه‌رسیږی . ده یوبل سړک دلاهور څخه تر ملتانه پوری جوړکړ. د دغه سړك په هر کوس باندی یو جگ مینار جوړکړ. ددغه منار څخه دکوس علامه څرگندیږی. په‌دغو ټولو سړکونو باندی د جوړ شویو سرایونو شمیر تقریباً اوه‌لس سوو ته رسیږی .

په هر سرای کی دمسلمانانو او هندوانو دپاره‌دگوښو گوښو کوټو ترتیب نیول شوی‌و. هرسرای دوی دروازی درلودی. په‌دغو دروازوکی‌دهندوانو او مسلمانانو داوبو گوښی گوښی انتظام په‌نظرکی نیول شوی‌و. دهندوانو داوبو او پخلنځی یو له‌بله بیل وو. په دوارو پخلنځیو کی تـه ورد ی او سړی اوبه وی چی په پخو لو او چښلو کی به کار تری اخیستل کیده. دهندوانو مسافرانو دپاره دی پخولو دپاره خوراك او بستر و ترتیب هندوانو ملازمانو ته سپارل شوی وو. همدارنگه دمسلمانانو مسافرانو دپاره مسلمانان ملازمان تاکل شوی‌وو. په‌سرای کی دمسافرانو په شپو تیرو لو باندی هیڅ دول تکس نه‌و. اوسیدل، خوړل، چښل، ملازم هر څه مفت (وړیا) وو. ددغو ټولو کارونو دکولو څخه سړی ویلی شی چی دغامه آسودگی په لرکی چی کوم عملی قدم شیرشاه اخیستی دی ده‌غه مثال دکوم بل پاچا په وخت کی نه لیدل کیږی.

دسرایونو په برخه کی دغه خبرهم دیادونی وړ ده چی ده د سرای په منځ کی یو پوخ جومات او هغه ته نژدی یو کوهی کیندل شوی و. تر څو مسلمانانو مسافرانو ته دلمانځه په اداکولو کی اسانی وی. په‌جومات کی دوه‌ذلیله خادم او ملا دحکومت له‌خوا تاکل کیدل او د حکومتی خزانی څخه به تنخواورکول کیده . دسرای او مسافرو دساتنی دپاره چوکیدار مقرر شوی وو. دغو چوکیدارانو ته به سرای ته نژدی ځمکه ورکول کیده . چوکیدارانو به‌دغه ځمکه کښت کړاه او حاصل به‌یی چوکیدار دخپل چوپړ په‌بدل کی اخیست. دوی به دځمکی مالیه او محصول نه ورکاوه .

## نور متفرق کارونه

هغه وخت داوس په شان تلیفون او پوستی نظم او ترتیب نه درلود. شیرشاه دپوستی او خبر رسولو دپاره په‌هر سرای کی به دوه‌په‌آسونو سواره کسان هر وخت

تیار ولاړ وو. دوی به پوسته اخیسته اودبل سرای نورو کسانو ته به یې رسوله اوبیرته به خپل ځای ته تلل. هغوبه هغه پوسته بل سرای ته په منډه وړه او په دې توګه ضرور به لاس په لاس کیده دیوه ځایه به بل ځای ته رسیده. څرنګه چې اوس په ځینو شیانو باندې د ټاکلي نرخ کنټرول لګول شوی په همدې توګه سره شیرشاه هم په خپل وخت کې ځینو شیانو دپاره ټاکلي نرخ وټاکه. دغو ټاکلیو نرخ تامو څخه خلاف دشیانو خرڅول سخت منع وو. دبازار دکلانترانو یوه دنده دا هم وه چې دهغه ځای دحاکم یا مامور په مشوره سره ورځنی یا لږ تر لږه هفته وار نرخ وټاکي. دیوه فوځي او عام ښاري د ډر اوو د پاره د هر شي نرخ یو دول و. د تاجرانو اومسافرانو دپاره شیرشاه یو عام حکم جاري کړی وچې بدوی سره به داسې سلوک کوی لکه چې دوی دپاچا میلمانه وي. که کوم مسافر یا تاجر مړ شي نو دهغه وارثان پیدا کړی، مال او اسباب او پیسې یې تول ور وسپاري.

## دجرایمو مخنیوی

دشیرشاه دمهربان زړه او دهغه دعفوې په برخه کې مو مخکې ځینې مثالونه وړاندې کړل. دهغه څخه داسې څرګند یږی چې نوموړی سخت نرم زړه درلود. ده حتمی داسې کسانو ته چې ده دوژلو اوله منځه وړلو ته یې ملا تړلې وه اود سیسې به یې جوړولې ترفیولو وروسته نه یوازې داچې بخښل به یې بلکه انعامونه او جاګیرونه به یې هم ورکول. دپراخ، لوی او نرم زړه مثالونه تردې زیات نور څه دول وي. ولې دا خبره هم دیادونې وړده چې کومو کسانو به په چا باندې ظلم کاوه دهغو مال او هستي به یې چور کوله، دخدای مخلوق ته یې ضرر رسول کسب وه، لوی لوی جرمونه به یې کول او هیڅ دار به یې نه کیده. دداسې کسانو سره شیرشاه هیڅکله مراعات نه کاوه او سختې سزاوې به یې ورکولې. داځکه چې که چیرې ده داسې نه وای کړی اوددوی سره یې هم دمراعات څخه کار اخیستی وای نوددوی زړور کیدل او نورو خلکو به هم ددوی په لیدنه په جرایمو او مظالمو لاس ونه پوری کړی وای. په نتیجه کې به په هیواد کې جرمونه زیات شوي وو او د خلکو اسودګی او ارامی به له منځه تللې وه. ولې شیرشاه ددغو کسانو دپاره داسې قوانین جوړ کړل چې دهغو له مخې د تولو جرایمو

هغه هیواد د یوه سره پاك او عادي مجرم هم د جرم پېښه پرېښوده، او په یو ډول آبرومندانه ښه ژوند کولو باندې بوخت شو .

د شېر شاه قانون داوو چې که چیرې به په کوم ځای کې غلا، لاروهنه، قتل او داسې نور جرمونه وشوو او مجرم به پیدا نه شو او یا دا چې د غلا شوي مال او دولت پته به و نه لګیده، نو د کوم کلي سره نژدې به چې دغه پېښه شوې وه د هغه ځای د کلانتر انو او ځمکوالو ته به یې امر و کړ چې د دغه نقصان او مال عوض ورکړي. د مجرم د نیو او د پاره به یې اول د دغې خبرې تحقیق کاوه چې هغه ته کوم کلي پناه ورکړې. کله به چې معلوم شو نو د هغه کلي د کلانتر او ځمکوالو څخه به یې رسیدلی تاوان اخیست او مجرم ته به یې سزا ورکوله. که نردې ورو سته به مجرم څخه مال لاس ته را وستل شو، نو خلکو ته به یې خپل مال بیرته ورکاوه. او اصلي مال به یې څښتن ته ور سپاره. د قتل په برخه کې دده چلند داوو چې که څو ورځې به چې قاتل نه و نیول شوی د هغه کلي په کوم کې به چې قتل شوی و ملك یا کلانتر بندي و. ملك ته به یې ویل چې که چیرې د قاتل پلټنه، کوې او را پیدا کوې یې نو په دې صورت کې به ته د ضمانت په مقابل کې خلاص شې. خو که چیرې به یې د ټاکلي میعاد په وخت کې قاتل را پیدا نه کړ، نو به یې بیا بندي کاوه. که یو څه نور وخت به یې وغوښت هم به یې ورکاوه .

دغه کار دامې عبرت ناك و چې د هر کلي خلك به په خپله د جرایمو د منځه وړلو په هڅه کې وو. هر سړی به دا زیار یوست چې دده په کلي کې هیڅ ډول خطرناکه پېښه پېښه نه شي. سرکاري خلکو به هم په پوره پاملرنه سره د دغو پېښو څارنه کوله. که چیرې کوم مجرم به د یوه ځای څخه بل ځای ته وتښتید نو د هغه بل ځای خلکو به خاص په دې خاطر چې چیرې نه په دې ګناه چې مجرم ته مو پناه ورکړې ونیول شو نو په خپله به یې د ګناه کار په نیولو کې هڅه کوله او حکومت ته به یې حاضر اوه. هیچا دا جرات نه شو کولی چې کوم ګناه کار او مجرم ته دې پناه ورکړي.

د دغو قوانینو او اعمالو نتیجه دا شوه چې د مجرم د نیولو د پاره به هم خلکو او هم سرکاري مامور پوره زیار یوست چې و یې نیسي. د خپل مسئوولیت او دارله کبله به هر چا زیار یوست او په ځان یې دا فرض ګڼله چې د جرایمو څارنه او مخ نیوی وکړي .

# شپاړسم فصل

## دمظالمو دمنځه وړل

### په رعیت باندې مهرباني

شیرشاه د رعیت په برخه کې دومره مهربانه وچې په دغه برخه کې هیڅ یو بل حکمران د ده سره برابري نه شي کولی. د خلکو او رعیت چې په پاچا باندې کوم اخلاقي او دنیوي فرایض دي شیرشاه هغه تول په ښه وجه، زړه سوي او پوره احساس سره سرته رسول. په دغه برخه کې د نوموړي د چال چلند مثال په تاریخ کې نه موندل کیږي. د خپل رعیت په برخه کې د ده مهرباني تر یوه مهربانه پلار په هیڅ توګه کمه نه وه. که چیرې به ده ته داپته ولګیده چې په رعیت باندې چا ظلم و تیری وکړ نو به ډېر سخت خفه کیده، بې تابه به شو او ژر تر ژره به یې د هغه د مخنیوي دپاره په عملي اقدام لاس پورې کاوه. تر څو به یې چې هغه کار ته څه سر و صورت ورنه کړ په بل کار به یې پیل نه کاوه. د رعیت څخه به یې هیڅ شي بې بدله نه اخیست. نور به یې هم د دې ډول کارونو څخه منع کول. د ده سره پخپلو مامورینو باندې دا تاکید کاوه چې د ځمکوالو څخه د تاکلې اندازې څخه زیاته حتی یوه دانه هم مه اخلئ. که چیرې د کوم ملک کلانتر په برخه کې به دا ثبوت ته ورسیده چې د تاکلې اندازې څخه یې د یوه بزګر او ځمکوال په برخه کې تیری کړی دی نو هغه به یې فوراً برطرف کاوه او سخته جزا به یې ورکوله. شیرشاه

به‌ویل :((دپاچاجلال ، دبدبه او دملك د اباډی غوره وسیله د هغه رعیت دی )) .
رعیت تل زیار باسی . که چیری زه رعیت ته تکلیف ورکرم نودوی به‌ازرده شی اوماته به‌بیراوی کوی . ددی کارنتیجه به‌داسی شی چی زمادسلطنت دزوال علایم به‌ څرګندشی .
شیرشاه به‌تل داشعر وایه :

گریز د رعیت ز بیدادگر
کندنام زشتش به‌گیتی‌سمر

شیرشاه به‌دلښکر دکوچ په‌وخت کی په‌ګلکه سره ددی‌خبری هدایت ورکاوه چی په‌لاره کی هیڅکله کښت او‌کرنی ته کوم‌نقص ونه‌رسوی . دکوم مجبوریت له‌کبله به‌که چیری‌کښت تر پښو لاندی‌شو او خراب شو نو د هغه د نقصان تخمینی اندازه به‌یی ولګوله او‌ښتن ته‌به‌یی ورکره . شیرشاه په‌دی توګه‌سره هر څومره هدایتونه چی ورکول دهغو په‌برخه‌کی به‌یی‌څپله هم‌زیاته پاملرنه کوله چی‌ایاعملی‌کیږی‌که‌نه ؟
همدا وجه‌وه‌چی په‌سفرکی به‌په‌لاره کی‌څو‌څله دلښکر څخه‌ګوښه‌شو او داخبره به‌یی معلومول له چی کوم عسکر څوبه قصداً یا سهواء کوم کښت یاونی ته نقصان نه وی رسولی . کله به چی د لښکر سره یو ځای روان وو نو ښی او کیڼی خوا کښت ته به یی کتل . که چیری به ورته معلومه شوه چی فلانی فصل ته نقصان او ضرر ر سولی دی نو هغه کښت به یی دده په غاړه کی واچاوه او‌ګر دبه‌یی په لښکرکی‌وګرځاوه . که‌نقصان به زیات‌وونو حتی غوږ پریکری به یی په تول لښکرکی ګرځاوه ترڅو په‌دی توګه سره نورو ته عبرت شی او بیا څوك دداسی ظلم کولوجراءت ونه کری .
دیوه اوښ بون څخه هیڅادول جرم وشو . دشیرشاه په‌حکم داوښ بون پزه سوری شوه او تول هغه کښت چی لو موری دیلی و په پزه کی وړو زړول شو او په لښکرکی وګر ځاوه . په دی توګه سره شیرشاه نومو ری ښه تشهیر کر . په کوم سفرکی چی دغه پیښه وشوه په هغه کی یی دغه سری په هم‌ه‌توګه سره د ځان سره‌وساته .
ددی حکم او امر څخه داغوره نتیجه را ووته چی فوځ به که‌د سفر او یا

حضور په وخت کې به هیڅ د اجرات نه شو کولی چې کښت او کروندې ته زیان ورسوي . په لاره کې به چې هر څومره کروندې او کښت مخې ته ورته راته لښکر به یې پخپله دهغه ساتنه کوله . دشیرشاه دغه احتیاط او د بې وزلو خلکو د مالونو ساتنه یوازې پخپل هیواد کې نه نه وه بلکه لښکر ته دا امر وه چې په نورو هیوادونو کې هم دغو شیانو ته پوره پاملرنه وکړي ده به خپل لښکر ته ویل چې دکښت او کروندې دپایمال کولو څخه ضرور ډډه وکړي . په لاره کې دهیچا څخه بیګار مه اخلئ او مه څیني بې عوضه کوم شی غواړئ .

د شیر شاه په قوماندانانو او مهر انو کې شجاعت خان ډیر مشهور و . دغه سړي ته لس زره لښکر او شیرشاه نورو ته زیات جاګیر ورکړ . دغه جاګیر څخه به نورو ته زیات عایدات راتلل . شیرشاه به دغه سړي باندې زیات مهربان و . او په دیره ښه درنو سترګه به یې ورته کتل .

یوځل دشجاعت خان ذ یې انصافیو څخه دوو زرو تنو شیر شاه ته شکایت وکړ . شیرشاه ورته وویل چې ستاسو شکایت به رفع شي . له ولی خوا شجاعت خان په دې چې په شیرشاه ډیر ګران هم سخت مغرور وه . هغه وچې خپل وکیل یې شیرشاه ته راولیږه . ولې دوکیل د را ستنیدو څخه دمخه شیر شاه داصلي کیفیت څخه ښه خبر شوی و . وکیل یې را وغوښت او دهغه په مخکې یې دشجاعت خان هیڅ مراعات ونه کړ او سم صفایي ورته وویل چې ته فقیر وې ما ته امیر کړې او ترتا ډیر غوره پښتانه می ستا تر لاس لاندې کړل . ددې سره سره بیا هم ستا خپته ستا د جاګیر په عایداتو نه ډکیږي او د بې وزلو عسکرو مال خوري . ما داسخت قانون ددې دپاره جوړ کړی دی چې ظالم قوماندانان دغریبو عسکرو او خلکو حقونه ونه خوري . باخبر اوسه چې که څیري ته زما روز وګنې نه واې نو ما به وژلی وې . څر انګه چې دغه ستاسو لومړی سهو ده دهمدې کبله زه تا بخښم . هغه هم په دې شرط چې زرتر زره دغه کسان خوشحاله او راضي کړه . کنه سخته سزا به درکړم .

شجاعت خان ته چې څه وخت دغه فرمان ورسید نو د ډاره و لړزیده .
ده دغه خبره چې یوه څه وخت یې ورکړې چې عسکر رضا کړي .

هغه وچې زرتر زره په آس باندې سور شو. د عسکرو څوموتورو ځي او په ډېر عجز سره يې د هغو څخه بخښنه وغوښته، د عسکرو حق يې پېغلای کړ او روغه يې سره وکړه. شجاعت خان تردې وروسته دروغې جوړې او د عسکرو د رضا کولو خبر يې بېرته شيرشاه ته وركړ. څه موده وروسته دې پېغله شيرشاه ته ورغي او د هېڅ قسم پښېماني څرګندونه يې وکړه. لدې داچې شيرشاه د حکومتي چارو په ټولو ارخونو او هره خبره باندې پوره پوه و. دپاچاهۍ تر نيولو وروسته هم د ټولو چارو هر ارخ ښه ځېرنه او پلټنه کوله. په کوم لياقت او پوهې سره چې ده ملکي او عسکري چارې پرمخ بيولي د هغو مثالونه او س هم په ډېرو تاريخونو کې ډېر لږ تر لاسه کېږي. شېرشاه هغه فتنه او دسيسه جوړونکي کسان چې تر ده مخکې په يې هند و ر پاچاهانو په وخت کې رامنځ ته کولې په داسې توګه سره تسليم کړل چې د هيڅ په خلاف ده سهو او فتنو اچولو جراءت ونه کړ. په دې توګه سره په ټول هيواد کې پوره امنيت قايم شو. په هيواد کې دغه امن او کراره کړاري يوازې د شيرشاه د څوره تدبير او قوت له کبله نه وه بلکه د هغه اصلي علت د نومونړي اخلاق، عادات، طورك، عدل، انصاف او رعيت پالنه وه چې د عامو او خاصو په زړونو کې يې ريښي ځغلولي وې او ټولو خلکو د زړه له کومې ده ته عزت، احترام او اطاعت کاوه.

# اولسم فصل

## پوسته، خبرونه او دداغ قانون

### • پوسته او خبرونه

دشیرشاه په زمانه کې برق، تلیفون، مطبعه، راډیو، ریل، موټر او داسې نور شیان نه وو چې دهغو په ذریعه خبرونه او پوسته دیوه ځای څخه بل ځای ته ور سوی. دهغه کبله دیوه ځای څخه بل ځای ته دخبرونو او پیغامونو او دپوستې رسولو دیر وخت نیوه. څرنګه چې دهیواد دانتظام او استحکام په برخه کې دخبرونو یو بل ځای ته رسول دیر غوره رول لوبوی دهمدې کبله شیرشاه په دغه نقطه باندې ددیر غور کولو څخه وروسته داحوال ورلو او راوړلو یوه په زړه پورې طریقه رامنځ ته کړه.

دشیرشاه په وخت کې جوړ و شویو سړکونو او ودهغو په څنډو باندې دسرایونو جوړ راویادونه مخکې وشوه دغه سړکونه او سرایونه نوموړی دخلکو او مسافرانو دارامی او آسودګی دپاره جوړ کړی وو. څرنګه چې شیرشاه یو دیر خلاق، مبتکر او هوښیار سړی وو ده ددغو سړکونو او سرایونو څخه ځینې نور کارونه هم اخیستل. ده ددغو سړکونو او سرایونو څخه د خبرونو او احوال وړلو او راوړلو په برخه کې هم کار اخیست.

په سرایونو کې شیرشاه د پوستې او خبرونو دپاره د ځایونو غوره بندو بست وکړ. هلته به دوه سوا ره تیار ولاړ وو. په دې برسیره دری نیم زره په اسونو

سوا ره کسان یې د همدغه کار د پاره خاص تاکلي وو . د دغو سوروډیوانخیلو کار همدا د خبرونو او پوستي رسول وو . ددوی په ذریعه به د بنګال ، پنجاب ، مالوه ، راجپوتانه ، بیهار او داسې نورو علاقو څخه ورځنې خبرونه مرکزته رارسیدل او د مرکز ضروري امرونه او احکام به بیرته د هیواد مختلفو ځایونو ته ورله کیدل . په دې برسیره په هر ولایت ، ولسوالي او هر لښکر کې به حکومتي جاسوسان وو . دوی به د حکومتي او امرو او قوانینو د عملي کولو ، مللو او خپرولو څارنه کوله . د دغو جاسوسانو به په دغو برخو کې ترلاسه کړي ټول خبرونه شیرشاه ته لیږل . د مسلمانانو پاچاهانو په لړکې شیرشاه هغه لومړنی پاچادی چې د سورو په واسطه یې د پوستي او خبرونو ورلو راوړلو بندوبست وکړ او د هیواد په هر ګوټ کې یې پټو او ښکاره خبرونو رسولو سلسله جاري کړه . په هر ولایت او هر ولسوالي کې حکومتي کسان خاص ددې منظور د پاره ساتل شوي وو چې د وی د هغو ځایونو حالات لیکلي وخت په وخت پاچاته وروليږي .

د لته دا خبره هم دیادونې وړده چې د داګ او خبرونو د لو اوراوړلو د پاره چې کوم آسونه ټاکل شوي وو هغه نسبت نورو آسونو ته تندرست ، قوي او چټک وو تر څو وکولی شي د پوستي او خبر رسولو کار په ښه توګه تر سره کړي .

په تاریخونو کې راغلي دي چې یو ځل یو سواره په یوه ورځ کې دري سوه کوسه منزل وکړ بل ځل یو سواره دري ورځې او دري شپې پرله پسې سفر وکړ . د بنګال حکومت د ګور ولایت څخه د راجپوتانه د علاقې تر چتوړ ګړهه پورې یې څو سوه کوسه لار وهله .

## دداغ قانون

د شیرشاه حیرانوونکي دماغ او پوهې نور ډیر نوي پلانونه او نوي نوي تطبیق کیدونکي قوانین وضع کړل . د دغو قوانینو او پلانونو په لړکې یو هم د داغ قانون و . د شیرشاه څخه د مخه چې کوم پاچاهان تیر شوي وو د هغو ځینو قوماندانانو او آمرانو د خپلو خپلو فوځونو شمیر د اصل څخه زیات ښود . او د پاچاهي خزانې څخه به یې زیاتې روپۍ تر لاسه کولې . ولې د جګړې په وخت کې به یې د پاچا د مرستې او ملاتړ د پاره لږ فوځ حاضر اوه . د همدې کبله شیر شاه

وویل چې دقومانداناو او آمرانو د دغې غلطې نتیجه بالا خره داګیږي چې ددښمن سره د مقابلې په وخت کې د قوماندانانو او آمرانود کومکې فوځ دلزوالي له کبله پاچامتضرر او پخپله هغهٔ آمران او قومدانان ماتې وخوري. ددغه فریب دوهم نیمګړی اړخ دادی چې پاچاته دبیاراتګ په وخت کې شرمیږي اوپښیماني کوي . همغه دی چې کوم بل حاکم ته ورځي او دهغه سره نوکر کیږي . لنډه دا چې دا دول کسانو چې دپیسوتر لاسه کولو دپاره کومې لارې چارې سنجولې وې دهغوله کبله حکومت ته سخت ضررو نه رسیدل .

دهمدې کبله نوموړي د دادول نیمګړ تیاوو او ضررونو د مخ نیوی دپاره د داغ قانون جوړکړ.تر څو په اینده کې جاګیر داران قوماندانان نه پخپلـه کومه ناروا ګټه وکړی اونه بې وزلان دخپلو وا حقو څخه محروم کړای شـي .
ددې قانون سره سم هغه تول آسونه چې قوماندا نانو او آمرانود خپلو ځانونو سره ساتلي دي او د هغو په سرد خزانې څخه پیسې اخلې ، داغ ور کول کیږي . دغه طریقه ډیره ګټوره ثابته شوه. هیچاد داغ څخه پرته دپیسو دتر لاسه کولو جرات نه شوکولی . دقوماندانانو او آمرانو دپاره دا هم ممکنه نه وه چې دوی دی په تاکلی شمیر عسکروکې زیاتوالی واکموالی راولی . تول آسان به په وخت په وخت ملاحظه کیدل . کوم آسونه به چې داغ شول د هغو د سورو نومونه به په منظمه توګه سره په کتابونوکې ثبت کیدل چې دفلانی آس سوور فلانی نو میږي . په دې برسیره د ملازمانو نومو نه به هم ګوښی ثبت کیدل .

دغه کار دومره پرمخ ولاړو چې حتی د درباره ملازمو ماموریتو نو اوښکو باندې تطبیق شو . ددې قانون نتیجیه داشوه چې د دا غ د ثبو ت څخه پر ته هیچاد سرکاری خزانې څخه پیسې او داسې نورې بیت المال نه شوا خیستې. اکثر وخت به آسونه دشیرشاه په مخ کې داغیدل .

ملازمان به یې راغوښتل پخپله به یې تنخاورته تا کله .کله کله به یې دوی ته پخپل لاس تنخاورویشله .کله چې یوامریا پاچا دومره محتاط ، عادل او څارونکی وی هلته نود مکر ، فریب ، چال او هنر ګنجایښن نه پاتی کیږي .

# اتلسم فصل

## عدالت، فوځ او ودانۍ

### عدالتي نظام

څرنګه چې شیرشاه په خپل نجیب ژوند کې د صحیح اسلامي تعلیم زده کړې پوره پوره خیال ساته او عمل یې پرې کاوه نو د هغې کبله یې د ملک چارو په ټولو ځانګوکې داسلام د ټاکلیو احکامو پیروي او څارنه کوله.

زیاتریې یوست چې حکومتي چارې د خلفاې راشدینو دکړو وړو سره سمې پرمخ بوزي. نوموړي په هیوادکې ملکي او فوځي دواړه محکمې دشریعت داساساتو سره برابرې را منځ ته کړې. د دعواو د فیصلو د پاره یې قاضیان وټاکل. دغه قاضیان به د اسلام په اصولو او رښتینو زده کړو باندې پوره مجهز او پوه وو. دوی به په اسلامي شرعه کې پوره وارد وو. دغو قاضیانو ته به د سرکاري خزانې څخه تنخا او مځکې ورکول کیدې. ددغو مځکو عایداتو به قاضیانو ځان او اولاد ساته. پدې برسیره شیرشاه ویلې وو چې دماپښین ترلمونځ وروسته دې ملاوومقتدیان ټول دې دغشو دویشتلو مشق اوتمرین کوي. هرسړی دې از ترلږه لس غشي وولي. د دغو غشو ویشتلو څخه دشیرشاه هدف اومقصد داوچې عام خلک دآینده وړځې جګړې د پاره تیار کړي. یعنې که چیرې جګړه پیښه شي نو دوی باید وکولی شي چې د

خپل ځان دفاع وکړی .

## عسکری نظام

دهیواد او دخلکو دساتنی او دفاع دپاره عسکر یو ډیر مهم ضرورت دی . هرڅومره چې فوځ او عسکری نظام قوی او پخپله برخه کی ما هر وی په همغه اندازه حکومت ساتلی او خلک یی په امن کی وی . دیوه هوره فرمان روا او حاکم په فریضو او مسئو لیتونو کی یوه دا خبره هم شامله ده چې ددی دپاره عسکر دهره پلوه ورسبوی او د هیواد په تولو برخو کی فوځی داسی پیند وبست وکړی چی د همغه ځای خلک د دښمن دهرډول تیری او یرغل څخه په امن کی واوسی .

شیرشاه دسلطنت د استحکام دهیواد دبهبودی اودخلکو په امن کی ساتنی دپاره فوځی نظام ډیر ښه منظم کړ. په دغه برخه کی یی په زړه پوری برهالیتوبونه په برخه شول. دهیواد په هغو پولو کی چی د دښمن ډیر غلونو خطر حس کیده هلته یی دضرورت وړ فوځونه ځای په ځای کړل . دهمدا رنګه د هیواد په مختلفو برخو کی ځینی چاونی هم جوړی کړی . په دغو چاونیو کی بهزیات شمیر عسکر وو. په دغو چاونیو کی به سپاهیانو کولی شول چی په خپلی علاقی برسیره نورو برخو ته هم دضرورت په وخت کی مرسته وکړی .

دپنجاب په پوله کی دکشمیر یانو اوګکهړیانو علاقه ده. ددغه ځای اوسیدونکی ډیر سخت جګړن اوسرکښه دی. دشیرشاه دحکومت څخه دمخه دغو قومونو دچا اطاعت ته غاړه نه وه ایښی اودهریوه سره به په جګړه بوخت وو .

شیرشاه ترپاچا کیدو وروسته غوښتله ددغو ځایونو دارو دوړ د منځه یوسی او ضرورت پیښ شو. دهمدی کبله درهتاس په کلاکی شیرشاه یو زیات شمیر فوځ ځای په ځای کړ. تر ټولو تولو چاونیو دغه چاونی ډیره کلکه وه. دغه کلا شیرشاه پخپله آباده کړه. ددغی کلا په ابادولو سره د سرحدی جګړو مخه تر ډیره حده پوری ونیول شوه. په رهتاس کلاکی دیرش زره عسکر اوسیدل. پهدی برسیره په ملتان، ګوالیار،

پیانه، رنتهبور، چتور، گدهه، ماندو، رایسین او چنارگده په کلاکی هم منظم فوځ و. په دغو کلاوو برسیره دبنگال په علاقه کی دفوځ ټول شمیر تر دریو لکو زیات و. په دغه لښکر کی یو لک ودیارلس زره سواره او پاتی نور پیاده وو. په لکنهو، کالپی، سنبهل، اجمیر، دهلی، اگره او داسی نورو لویو لویو ځایونو کی یی گوښی گوښی فوځ اچولی وو. دجاگیر دارانو اوقوماندانانو سره چی کوم فوځ وهغه لانور و. دجگړی په وخت کی به ددوی لښکر هم دمرستی دپاره راتلل او برخه به یی اخیسته. جاگیر دارانو ته به دپاچا له خوا منصب ورکول کیده. مثلاً چاته به دپنځوسو ځینو ته د زرو او ځینی نورو ته ددوو لسو زرو سورو منصب ورکول کیده. یعنی دوی د ورکړ شوی منصب سره سم سواره عسکر دځان سره اوسولی شول. ددغو جاگیر دارانو د سورو معاش سره سم جاگیرونه ورکول کیدل. تر څو ددغو دعایداتو څخه خپل ټول مصارف پوره کړی. دغه فوځ به پاچا هرکال معاینه کاوه. شیر شاه به تل یو نیم لک سواره او پنځه پنځوس زره پیاده عسکر دځان سره ساتل. کله به چی پاچا نابیره او زر ترزره کومی خوا ته تللو، نو دغه لښکر به ورسره و. دشیرشاه سره پنځه زره فیلان هم وو. په دوی کی ځینی دسورلی او ځینی دجنگ دپاره وو. د آسونو خو شمیر نه و. د جگړی دضرورت مخی ته ځینی نور آسونه هم اخیستل کیدل. ځنی آسونه به په سوغات کی هم ورکول کیدل. دهمدی کبله ددوی شمیر زیات و. خو مره چی شیر شاه در عیت سره مینه درلوده په همدی توگه یی دآسونو دښی روزنی پاملرنه هم کوله. ده به ټولو نوکرانو ته وویل او تاکید به یی پری کاوه چی د آسونو روزنی او غمخوارگی ته پوره پاملرنه وکړی. داځکه چی دغه حیوان دجگړی په میدان کی پوره په کار راځی. په دی بانلدی سواره په دیره ښه توگه سره جنگیږی. شیر شاه دهر سواره او پیاده څیره ثبت کوله. شیرشاه پخپله هر سواره او پیاده ته تنخا تیا کله. هیڅ افسر نه شو کولی چی تر لاس لاندی کوم سړی برنا حقه دخپلو حقوقو څخه محروم کړی او یا تیری پری وکړی.

## آبادی-

د شیرشاه په آبـاد یوکی تر ټولو زیات سړ کونه، سرایونه او جنگی کلاوی

شاملې دي . ولې په دغو دريو برسيره هغه يو جامع جومات د جمنا په څنډه وباندې نوې آباد کړ. څلورمه ويل چې شيرشاه د رهتاس کلا (په جهلم کې) پخپله آباده کړه. دغې کلا د خپل کلکوالي له کبله پوره شهرت دراود . دغه کلا د تو درمل کهتري ترسر پرستۍ لاندې آباده شوه په کوم وو رځو کې چې کلا باديده هغه وخت تو درمل شيرشاه ته وليکل چې دغه د گکهړون ملک دی. دوی د مزدوری او خواری څخه بلوري .دوی مزدوری ته نه حاضر يږي دهمدې کبله دکلا بدول څه ناڅه مشکل کار دی .دوی پخپلو کې داپريکړه کړي ده چې کوم سړی چې زموږ د جملې څخه د کلا په آبادۍ اومز دوری کې برخه واخلي د ملک څخه به يې وباسو. دهمدې دار له کبله هيڅوک موږ ته نه را ځي . شيرشاه په ځواب کې ورته وليکل چې زه د کلا د آبادولو د نيت څخه نه اوړم هرڅو مره روپۍ چې پرې لگيږي پروا نه لري. ولې کلا بايد آباده شي. تو درمل د شيرشاه په خبره وپوهيده .هغه و چې اعلان يې وکړ چې په يوه تيږه راوړلو باندې يوه اشرفي ور کوم. گکهړيانو چې د اشرفيو نوم واوريد، هغه وچې ځينو يې دغو مې ترو ن څخه ځان وغړاوه په کاريې پيل وکړ. په دې توگه سرونږو وروهغه خلک د کار سره عادت شول. په دې توگه سره خلکو د کلا په آبادولو کې برخه واخيسته او تر يو څه مودې وروسته آباده شوه په دغه کلا باندې د شيرشاه زښتې زياتې پيسې ولگيدې. دغه کلا په خپله نوعه کې يوه ډيره کلکه کلا وه.

په دې کلا برسيره شيرشاه ځينې نورې کلاوې هم جوړې کړې . د قنوج پخوانی بنار په ځای شهر شاه يوه غوره کلا جوړه کړه . په دغه کلا يې پخپله نوم شيرگدهه کيښود . په بهره کنډ نومي ځای کې يې د ( بهسن کنډلي) په نوم يوه کلا جوړه کړه . د بهره کنډ په غرونو کې شيرشاه يوه بله کلا هم دشير کوه په نوم آباده کړه .

دغه وخت د دهلي آبادي د جمنا د سين څخه په يوه اړخ واتن کې وه . شيرشاه د پخوانيو آباديو په ځای د جمنا دسين په غاړه با ندې دنويو آباديو بنسټ کيښود. د دغو آباديو په اړه کې يې دوې کلاوې هم جوړې کړې . وړه کلا دده د اوسيدو د پاره وه.لويه کلا دعامو خلکو د او سيدو د پار آباده شوې وه . شيرشاه حکم وکړ چې

ترکلاوو گرد چاپیره یوه لوی دیوال تاو کړی. ولی له بده مرغه چی دهغه تر جوړیدو د مخه دی مړ شو او دغه کار پاتی شو.

دشیرشاه دتعمیراتو او آبادیو په لړکی موږ مخکی دجامع جومات یادونه وکړه. هغه جومات دهمدغی وری کلا په دننه کی جوړ کړی شوی و. شیرشاه دغه جومات ډیر ښکلی او په ډیره ښه توگه سره آباد کړ. په جوړو اوکی یی د لاجورد واو مرمر تیږو څخه کار اخیستی و. په تیږو کی یی بیا ډیر ښکلی نقش نگار اچولی و.

شیرشاه به ویل چی زما دانیت دی چی د خپل هیواد په هر گوټ کی د خپلی عملی او بیا ریانو دپاره وړه وړه کلاوی جوړی کړم، ترڅو په دغو کلاووکی زما رعیت په آسودگی او آرامی سره ژوند تیر کړی. ولی ژوند ملگر تیا ور سره ونه کړه. د ده دغه ارادی سر ته ونه رسیدی.

دشیرشاه ترمړینی وروسته د ده زوی د خپل پلار په پلنه ولاړ. هغه وچی د حکومت اساس ورځ په ورځ ضعیف کیده. د شیرشاه په کورنی کی بی اتفاقی پیدا شوه. اولادی یی په کور نیو جگړو بوخت شوه نتیجه داشوه چی د کوم حکومت اساس چی شیرشاه ایښی و، او څوکاله یی د هغه دپاره زیار ایستلی و اولادیی په دووکلونو کی مخ پر ځوړ کړ.

## عادت او خو یونه

شیرشاه د دیرشان او شوکت او دب دبی څښتن و. ده ډیر لښکر ډیر زیات او قوی و. ده ډیر سترستر راجه گان، نوابان اوقومانداانان تابع کړل. ده لوی پاچا همایون سره یی څوځله جگړه وکړه. بالا خره هغه ته یی داسی سخه ماتی ورکړه چی هیواد یی پر ینبود او و تښتیده. ده د خپل هیواد داسی غوره انتظام وکړ چی حتی نورو پاچاهانو ته د هغه په کار وایبو سره کینه ورتله. دده په خیر پاچا ته پر خپل ځان او کاروا یبو فخر کول په ځای دی. ولی ده دغو تو او کاروایبو شان او شوکت سره سره بیاهم په نوموړی کی دکبر غرور نښه نه وه. ده ډیر متواضع بـرد بار، نـولک زړی، خیر رسوونکی او عادل پاچا و. د نورو پاچاهانو په خلاف دعوامو سره خبری کول ده هیڅکله عارنه گنڼلی. هر چاته دده دعدالت دروازی خلاصی

وی . خپله ده دیرښه خوی وونه او اخلاق د ولسو د ل . په د یره ښه مو دبانه توګه او غوره سلیقه به یې خبری کولې .

دربارته به یې بې وزلو عرض کوونکی او شکایت کوونکي په ازاده توګه سره ورتلل . که چیری کوم مامور به دکوم عارض د عرض او شکایت مخه ونیوه نو شیر شاه به هغه ته جزا ورکوله . د عسکرو سره یې هم همدا کول د مینې څخه دکې خبری اتری کولې . تر څودوی خوشحاله او دخپل هیواد د قربانی ورکولو په لاره کې تل تیار وی . که کوم سړی ته یې دهغه د فعل او یا ناوړه کار او خبری په سبب قهر راغی نو بیا به په د یره نرمی سره هغه پسو هاوه . په رنګ کې به یې د قهر او غضب آثار هیڅکله نه لیدل کیده . په غلطۍ سهوه کولو باندې به یې سلک سوخ بې څوک نه تهدیداوه . بلکه په ډیر مستقیمه توګه سره به یې هغه په داسی شکل سره پوهاوه چې غلطی او سهوه کوونکی به خپله سهوه حس او پښیمانه شو . دعامو خلکو دخو شامه او ورپدو سره آشناله وو اود داسی کار څخه یې بد راتلل . که چابه د ده په مخکې خو شامه کاوه او یابه یې هغه مخامخ د ده تعریف کاوه نو داسې سړی به یې د داسی کار څخه منع کاوه .

شیرشاه د شعر او شاعری سره ډیره مینه درلوده ښه شاعر او شعر دیره ستاینه به یې کوله . دیر اخلاقی او غوره مطلب لرونکی اشعار یې یا دوو او د موقع په وخت کې به یې ویل .

په خپل رسولو کې بې همتا و . دده خپل رسول پروازی امرانو ته هو پلکه په عامو خلکو یې هم دیره مهربانی او زړه سوی درلود . دبې وزلو او غریبو خلکو دپاره یې داسی دیر کارونه کړی دی چې دلو موری د غریب پالنې او دوزنې نه په زړه پوری ثبوت کیدای شي . د شریعت په احکامو باندې سخت ولاړو . لمونځ او روژه یې کول اونیول . کله کله به یې سخته وظیفه هم کوله . بندی خانی او مسکین خانی ته به ورتللو او د حاجت مندو خلکو ضرورتونه او اړتیاوی به یې پوښتلی او پوره کولی . زړه ماتو ل او مایوسه کول یې ګناه بلله . کوم سړی به چې د کوم کار او هر د وری غوښتلو د پاره ورته ورغی هیڅکله یې نه مایوسه کاوه . زیاتره به یې

پوست چې د هغه د لیاقت او پوهې سره سم کوم کار ورته پیدا کړي .
ځینې عسکرېي دضرورت څخه زیات وو . دا ددې د پاره چې ځینو کسانو ته
دهغې درکه دروزي موندلو یوه لار جوړه شي .
دځینو عالمانو او پوهانو دنمانځنې په خاطر به یې هوی ته دخزانې څخه په منظمه توګه
سره پیسې او تنخاوې کوله .
شیرشاه د هیواد محتاجو او حاجتمنو خلکو سره د مرستې په غرض ټولو
حاکمانو او واکدارانو ته امر وکړ چې هر څوموره ګوډ ، شل ، رانده ، بې وزلي
اوبې لاسوپښو دي دهغو ټولو لستونه جوړ اوراوړي لیږي. په دې پرسیره ده
دهغو کوندو نومونه چې د نفقې ورکوونکي سري یې نه وه هم وغوښتل . دغه ټول
لستونه په شیرشاه کتل او هریوه ته به یې د ضرورت سره سم نغدې پیسې ټاکلې .

## مساوات

شیرشاه که څه هم سخت مسلمان او په اسلامي شریعت باندې سخت ولاړ و .ولې
ددې سره سره نوموړي ډیر پراخ حوصله او د هر دول تعصب څخه پاك و .
دشیرشاه دهر ګرانښت یوستر علت هم دا یې تعصبي وه .په مسلمانو علاوه هندوانو
هم ده په مقابل کې دهیڅ دول سر ښندنې دریغ نه کاوه . ده به هیڅکله د هندوانو
په مذهبي مسایلو ، دودونو او دځمکې حقوقو په برخه کې هیڅ دول مداخله نه کوله .
دملکي او مالي کتو او مقامونو څخه هندوانو هم لکه مسلمانانو داسې ګټه اخیسته .
ده چې دمسافرو دپاره کوم سرایونه جوړ کړل په هغو کې دهندوانو داوسیدو ، څښلو
اوخوړلو دپاره عیناً دمسلمانانو په څیر ترتیب نیول شوی و. په هندوانو برسیره
په هندوستان کې چې هر څومره دنوروملتونو خلك وو دهغو ټولو سره نوموړي
مساویانه راشه درشه کوله . څومره به یې چې داسلامي علماوو قدر کاوه په همغه
اندازه یې دنوروملتونو عالمانو او پوهانو درناوی هم کاوه څومره به یې چې
مسلمانانو علماووته ګټه رسیده په همغه اندازه یې دنورو مذاهبو علماوواو پوهانو
ته هم ګټه رسوله . ځکه داچې شیرشاه یو بې همتا ، دغوره کرکټر څښتن پاچا و .
مثال یې دهغه په پاچاهانو کې نه لیدل کیږي .

## د شیرشاه اقوال

دلته به د شیرشاه ځینې اقوال راوړو. دد غواقوالو ځخه چې موږ یې دلته را وړو ځرګندیږي چې نوموړي څومره لوی عالم ، پوه ، مدبر ، سیاست مدار او وظیفه پیژندونکی و.

۱ – پاچاته ښایي چې دخپل خدای عبادت وکړي. ددغه عبادت یوه ګټه دا ده چې د ده په ټولو کارونو کې به خدای تعلی برکت کیږدي او ملاتړ به یې وي. دوهمه ګټه یې داده چې کله چې رعیت خپل پاچا متدین او پرهیزګاره ووینې نو دغه کار به دوی باندې هم ژور تاثیر کوي او د پرهیزګاری خواته مایل کیږي. د زیاتو خبرو او نصیحت پر ځای که چیری پخپله خپل عمل خلکوته وښیې دا به زیاتره ښه او اثر خوروونکی وي.

۲ – پاچا باید تل د خدای شکر په ځای کړي چې دی یې پخپلو بندګانو حاکم کړی دی.

۳ – کوم پاچا چې دخپل رعیت د خدمت د پاره ملانه تړي ، رعیت یې هم دده اطاعت ته ملانه تړي یعنې که چیری پاچا دخپل رعیت خدمت ونه کړي نو رعیت هم هیڅکله دده اطاعت ته غاړه نه ږدي.

۴ – په پاچاهانو فرض ده چې دخپل رعیت هرجایز او رواکار عبادت وګڼي او سرته یې ورسوي.

۵ – د رعیت سرنوشت دبې ایمانو ، خود غرضو او رشوت خورو عمالو لاس ته سپارل د هیواد بربادول دي.

۶ – په ټولو انساني صفتونو کې عدل دیر غوره جوهردی. دسطنت او حکومت بقا او پایښت په همده کې دی.

۷ – پاچاهانو ته لازمه ده چې تل بیدار وي. پاچا باید پخپله دکارونو څارنه وکړي ولوکه دیر کوچنی هم وي.

۸ – پاچا باید کارونه داسې منظم کړي چې د هیواد په هرګوټ کې د خلکو دهر دول حرکت څخه خبر وا وسی.

۹ – پاچا هانو ته ښايي چې خوده غرضه او رشوت خواره وزيران او عمال ځان ته نژدې پرې نږدې . د دا ډول خاينو کسانو څخه هيواد ، حکومت او ملت ټولو ته ضرر رسيږي .

۱۰ – د پاچاهانو سخت ترين دښمن ظلم او غفلت دی . د دغو څخه دوه خطرونه پيښيږي . يو د دولت ارزو نه بل د هيواد او خلکو بربادي .

۱۱ – پاچا د خلکو د ښيگڼې څخه پوره دا په پوازي د دي د پارمتا کې چې دوی د ملك او قانون ساتنه وکړي . که چيرې دغه دامامادور کسان پخپلو کارونو کې غفلت او خلاف رفتاری وکړي نو دوی ته بايد تر نورو سخته سزا ورکړل شي.

۱۲ – پاچاهانو ته دا خبر مهپاد واری چې دی د رعيت دارامي او آسودگی د پاره خوب په خپل ځان حرام کړي . آسودگی دی پر يږدی دغه کار د ده د پاره يو لوی ثواب دی .

۱۳ – د فاتحيلو د پاره ضروری ده چې کوم ملك او محکه چې د دوی تر قبضې لاندې راشي هغه په ډېر تو که سره سمبال او د ساتلو د پاره يې ښه بندوبست وکړي . تر څو داخلی او بيرونی لاس وهونکو ته د لاس وهنی موقع تر لاسه نه شي .

۱۴ – د لوی سړی ښيگڼې دا ده چې هغه هر وخت په کوم ښه کار ولاړ وي چې بوخت وي .

۱۵ – پاچا ته ښايي چې تل د خيرلانه يشو ، مدبر و او پوهو خلکو سره مشوره وکړي .



# Pashtun Shershah

Translated into Eng.

by

Abdul Rahim Zadran

Afhganistan Academy

of Sciences.

International Centre for

Pashto Studies

Kabul, 1990